# مورچل

افغانستان کې دامریکا پوځي شتون د سیمې سالمیت ګواښي...!

نامۀ شورای رهبری امارت اسلامی به محترم ابوبکر البغدادی!

نهم کال شپږمه، پرلپسې ۸۲ ګڼه، شعبان المعظم ۱۴۳۶هق، جون ۲۰۱۵م

مجاهده! ستا عزم ته سلام

کابل اداره خپل عسکر د ملکي خلکو وژلو ته هڅوي

ستر فتوحات او لویې سیاسي لاسته راوړنې

ستر فتوحات او لویې سیاسي لاسته راوړنې

د طواغیتو یو ستر شباهت!



# مورچل

نهم کال، شپږمه پرلپسي ۸۲ یمه، شعبان المعظم ۱۴۳۶ هق ، جون ۲۰۱۵ م

علمي، سیاسي او جهادي میاشتنۍ خپرونه



| ګڼه | عـــنـــوان | مـخ |
|---|---|---|
| ۱ | افغانستان کې دامریکا پوځي شتون د سیمې ........! | ۱ |
| ۲ | نامهٔ شورای رهبری امارت اسلامی به محترم ........ | ۳ |
| ۳ | نامتو مسلمان فاتحین | ۷ |
| ۴ | فیمینېزم په افغانستان کې؛ تصادف که پلان شوې .؟ | ۱۰ |
| ۵ | ستر فتوحات او لویې سیاسي لاسته راوړنې ........... | ۱۴ |
| ۶ | د طواغیتو یو ستر شباهت! | ۱۷ |
| ۷ | د الله په نزد مجاهد له ټولو خلکو نه غوره دی | ۲۰ |
| ۸ | رمضان فرصتي براي دګرګوني | ۲۴ |
| ۹ | دروژې لومړی لسیزه، د رحمتونو د وربښت ورځې | ۲۷ |
| ۱۰ | د سید التابعین حسن بصري(رح) ژوند ته لنده کتنه | ۳۰ |
| ۱۱ | جنګي جنایتونه (جون) | ۳۲ |
| ۱۲ | د افغانستان د اسلامي امارت د سیاسي فعالیتونو..... | ۳۵ |
| ۱۳ | په روژه کې دې د ځان لپاره هدف ټاکلی؟ | ۳۶ |
| ۱۴ | د روسیې او لوېدیځ روانه سړه جګړه او پر سیمه .... | ۳۸ |
| ۱۵ | معضلهء خونین "برما" و بی چارګی "سازمان...... | ۴۳ |
| ۱۶ | سورة النساء مي ژوند بدل کړ | ۴۵ |
| ۱۷ | آثار وعلایم خون در شناسایی مجرمین- ونظریات | ۴۷ |
| ۱۸ | مجاهده! ستا عزم ته سلام | ۴۹ |
| ۱۹ | دعوت ارشاد، او جلب جذب کمیسیون | ۵۲ |
| ۲۰ | میاشتني خبرونه | ۵۳ |
| ۲۱ | ګلکڅونه | ۸۱ |
| ۲۲ | دتلفاتو جدول | ۱۲۰ |




د امتیاز خاوند

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر

شکـــور (شفق)

کتــنپلاوی

حـــسن خېـل
حـــسن زوی
زبیر مـــسافر
ایــوب صــافی
حکمت بغلانی
حافـظ سعـــید

تخنیکي چارې

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه

مکاتباتي ادرس


پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر

E-mail: baakhtaraf@yahoo.com




# افغانستان کې دامریکا پوځي موجودیت دټولې سیمې سالمیت او ګټې ګواښې...!

ښکاري له افغانستانه دامریکا یې اشغالګرو قواوو وتل لایوه پېچلې معما ده او نده معلومه چې دامریکامتحده ایالات افغانستان کې دخپلو میشت امریکایې عسکرو راتلونکي په اړه کوم ګام پورته کوي؟ البته ځیني څرګند علایم او قراین جوتوي چې د ۲۰۱٦ کال ترپایه له افغانستانه د امریکا یې ځواکونو د وتلو په پریکړه عمل حقیقت نلري بلکې یو شمېر مخکښ امریکایې واکمن داشغال دتمدید خوبونه ویني.

په دې لړ کې د مشهور امریکا یې سناتور(جان میک کین) دامریکا له ولسمشر. (بارک اوباما) دا غوښتنه[چې هغه دې له افغانستانه دامریکایې ځواکونو دبشپړې انخلاء پر پریکړه بیا دویم واري کتنه وکړې او یو داسې پلان دې جو کړې چې دزمکنیو واقعیتونو سره سمون ولري] دا اندیښنه قوي کوي چې امریکا یې چارواکې له افغانستانه د پوځي انخلاء په باب رښتیا ووته زمن نه دي اوتل په دې موردکې دخلکو تیر ایستلو په موخه دروغ وایي! جان میک کین دپورته غوښتنې ترڅنګ خبر داری ورکړی [که دشوې پریکړې سره سم د۲۰۱٦ زکال ترپایه له افغانستانه ټول امریکا یې عسکر را وایستل شول نو نه یوازې امریکا به په افغانستان کې خپلې لاسته راوړنې وبایلې بلکې له دې څخه به هم زیات خطرناک عواقب او ګواښونه رامنځته کړې] دهغه په اند دولسمشر. لخوا افغانستان کې دزرو تنو عسکرو پاته کول دشته زمکنیو حقایقو په خلاف اوبالعکس عمل دی!

خو د امریکایې سناتور دا څرګندونې پخپله د زمکنیو واقعیتونو سره سمون نلري! او دسیاسي کارپوهانو په وینا: نامعقولې او غیرمنطقې څرګندونې دي!!ځکه اوس په دې

شک نشته چې امریکا او ملګري یې په افغانستان کې دتاریخي شکست ترخې شیبې لنډوي او ددوی دځواکونو حیثیت دلته اوس دمغلوبو او شکست خوړلو ځواکونو دی، چې ښکاره بیلګې یې دهېواد په لراوبر کې داشغال پر ضد پراخ بریالي عملیات تنظیمېدل او اشغالګرو ته دسر اومال درانه زیانونه اوړېدل دي.

دعزم چټکو عملیاتو وښوده چې د هېواد دخاورې ډېره سلنه دچا ترنفوذ لاندې ده؟ او ولس دچا په خوا دی؟ ځکه دمجاهدینو څخه دولسي ملاتړ او همکارۍ حقیقت پټ اوپناه ندی، ولس په ښکاره په سر اومال دواړو د مجاهدینو دفاع ته ژمنتیا لري، په دغسي چاپیریال کې دامریکایې سناتور دانخلاء د مودې غځولو وړاندیز حیرانوونکی او د زمکینو حقایقو له منلو څخه دځرګند انکار مرادف عمل دی! دکتونکو په اند: دا وړاندیز جوتوي چې امریکایان پخپلو کړو وحشتونو پښیمان ندي او په راتلونکي کې هم دافغانستان په ګډون دټولې سیمې دامنیت او ثبات ګواښنې په اړه شوم عزایم لري! او سربیره په دې چې دامریکا فوځي موجودیت دافغانستان دخلکو ملي ازادې جغرافیوي سالمیت اوسیاسي استقلال ګواښي! بلکې په ورته توګه دسیمې او ګاونډیو هېوادونو دخپلواکۍ لپاره هم جدي خطر دی چې له سیاسي، اقتصادي او جغرافیوي پلوه ورته نه جبرانیدونکي زیانونه به ورسوي !دکومو لپاره چې امریکا په افغانستان کې دخپل پوځي موجودیت په دوام ټینګار لري

دتېرو څوارلسوکلونو په موده کې کوم څه له امریکایانو پاته دي چې دهغې په عملي کولوسره به دوی ته دلته دپښې دټینګېدو سبب شي، ټولې هغه حربې چې ددوی پالیسي جوړوونکو ککریو سنجولای شوای عملي شوې خو نتیجه یې بیا هم په مخامخ او بالواسطه دواړو محاذونو شکست و! هیڅکله دغه ډول غوښتنې او ځرګندونې شکست په بري بدلولی نشي اونه به دافغانستان څو په شمار ضمیر پلورونکې ګوډاګیان ورته نجات ورکړای شي! لنډه داچې چې امریکا په ټوله معنی جګړه بایللې! دنورې سرتمبکۍ او ضد پرځای غوره داده چې دپخواني شوروي او انګریز له عبرت ناک انجام سبق واخلي او دهغوی دشکست او زوال داستانو نه بیا ښه په زور اوزیر ولولي!!

# نامهٔ شورای رهبری امارت اسلامی به محترم ابوبکر البغدادی!

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله معز التوحید وأهله، ومذل الشرك و حزبه، وأشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريك له في ربوبيته و ألوهيته و أسمائه وصفاته، و أشهد أن نبينا محمدا عبده و رسوله، اللهم صل و سلم و بارك عليه و على آله و أصحابه وبعد:

بحضور محترم ابوبکر البغدادی و تمام مجاهدینی که تحت قیادت مقام محترم بر خلاف اشغال آمریکا در حال جنگ هستند!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته

از خداوند متعال میخواهیم به تمام مجاهدین راه حق که برای تنفیذ نظام مقدس اسلامی و اعلای کلمة الله در حال جنگ هستند، کامیابی نصیب نموده و توفیق تمسک و اعتصام به احکام مقدس الهی را نصیب شان گرداند.

محترمین! افغانستان از نخستین قرنهای ظهور دین مقدس اسلام تا هم اکنون، قلعهٔ مستحکم اسلام و بعد از جزیرة العرب در بزرگترین خشکهٔ آسیا در نشر و اشاعت اسلام رول مهمی ایفاء نموده است.

قهرمانان جهانی دوران معاصر جهاد همانند امام المجاهدین شیخ عبدالله عزام، قائد المجاهدین شیخ اسامه بن لادن ، قاهر الصلیبین ابومصعب الزرقاوی و قاهر الملحدین خطاب رحمهم الله جمیعا، همهٔ اینها افتخار شاگردی مدرسهٔ جهادی در افغانستان را در کارنامه های خود داشتند.

با کدام عزمی که مجاهدین از شروع با انگلیس ها، روس ها و امروز با آمریکائی ها جهاد نموده و بخاطر اسلام قربانی ها را تقدیم کرده و می کنند، امارت اسلامی و ملت مسلمان افغان در این راه قربانی های فراموش نشدنی پیشکش نموده و می نمایند که اینست یکبار دیگر علیه اشغالگران صلیبی جهاد مقدس به سرمنزل مقصود نزدیک گردیده است، اکثریت آمریکائی ها و دوستان کافرشان فرار نموده اند، مجاهدین روز بروز مناطق وسیعی را تحت کنترول و سیطرهٔ خود در می آورند و سال جاری ۱٤۳٦ هـ ق امید موفقیت های بیشتری داریم تا بقایای دشمن را نیز از بین برده و بستر آنان را جمع کنیم. ان شاءالله تعالی، وماذالك علی الله بعزیز.

بزرگواران! یکی از دلائل تجاوز به رهبری آمریکا بر افغانستان، از بین بردن نظام اسلامی بود که مطابق احکام قرآن و سنت و راه هدایت و روشن اهل سنت و الجماعت ایجاد و از جانب ارگانهای حکومت کشور در تمام سیستم حکومتداری واجب الاجراء بوده و ریشهٔ شرک و کمونیستی، نظریه و فکر فساد را از بیخ کنده بود و جلوی تمام بدعت ها و خرافات را گرفته بود.

اینچنین نظام اسلامی برای جهان کفر به رهبری آمریکا قابل تحمل نبود، از اینرو با ارائه کردن بهانه های مختلف بر آن حملهٔ وحشیانه نمودند.

ملت مسلمان افغان تحت قیادت امارت اسلامی که در راس آن امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد (ادام الله حیاته) قرار دارد با شهامت بسیار، علیه متجاوزین صفوف جهادی خود را آماده نموده و

سیزده سال تمام، قربانی های بیشماری را بخاطر آزادی افغانستان از تجاوز اشغالگران و قائم نمودن حاکمیت اسلامی تقدیم کرده اند.

آنچه را به شکل خصوصیت امتیازی پالیسی جهادی امارت اسلامی در مقابل اشغالگران صلیبی میخواهیم به شما یادآوری کنیم اینست که، امارت اسلامی بر خلاف دنیای کفر بر وحدت و مرصوص نگه داشتن صف جهادی بسیار ترکیز داشته و تا حالا نیز دارد.

زیرا ما در زمان اشغال شوروی نتائیج و تاثیر نادرست و منفی تعدد و تفرق صفوف جهادی را با چشمان خود مشاهده کردیم که در نتیجهء آن ثمرهء خون یک و نیم میلیون شهید چهارده سال جهاد مقدس در افغانستان ضائع و تمام امیدهای امت اسلامی مرتبط با آن جهاد اسلامی با خاک یکسان گردید، بنابر ارشاد پیامبر اکرم حضرت محمد صلی الله علیه و سلم که میفرماید:{لاَ يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ} رواه البخاري برقم ٨٣، ومسلم برقم ٧٦٩٠.

امارت اسلامی بخاطر مرصوص نگه داشتن صف جهادی مامور به عمل بوده و بر وحدت آن از اینرو بسیار اصرار و پافشاری دارد که الله تعالی در این مورد فرموده است: "إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ" (٤) الصف.

و در جایی دیگر با نص صریح ، قرآن کریم مسلمانان را از تنازع، تفرق و اختلاف درونی منع میکند و به آنان چنین رهنمود میکند: "وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ○ وَاصْبِرُوا ○ إِنَّاللَّهَمَعَالصَّابِرِينَ" (٤٦) الانفال

امارت اسلامی برای تعمیل نصوص فوق الذکر قرآنی، با توجه به تجارب جهاد گذشته و معرفت کامل از محیط و جامعهء خود، تعدد صفوف جهادی در افغانستان را نه به نفع جهاد و نه هم به نفع مسلمانان می داند، زیرا خصوصیت محیط افغانی چنین است که همیشه درگیر اختلافات و نزاع داخلی می باشد، و اگر قیادت واحد و صف واحد باشد، احتمالات اختلافات داخلی از بین می رود.

امارت اسلامی تاکنون تمام فتنه های اختلافات و تفرقات را در نتیجهء وحدت الصف خنثی کرده است، اگر اکنون در اینجا در کنار امارت برای ایجاد یک صف جهادی جداگانه و یا هم قیادت دیگری تلاش صورت گیرد، عملاً زمینهء فتنه در نتیجهء اختلافات و تفرقات مساعد می گردد، از اینرو امارت اسلامی تنها فعالیت های جهادی در افغانستان را تحت قیادت امارت مشروط و بر نقاط ذیل اصرار دارد:

-١ اینکه امارت اسلامی مامور به عمل بر وحدت صف است و علاوه بر آن در هنگام قتال و مقابله با کفار یک امر ضروری است پس جهاد علیه متجاوزین آمریکائی و مزدوران آنان در افغانستان باید تحت یک بیرق، یک قیادت و یک امر باشد.

از انجائیکه قیادت امارت اسلامی افغانستان بر اساس انتخاب و مبایعت شرعی از سوی ١٥٠٠ تن از علمائ کشور (شورای اهل حل وعقد) تعیین گردیده است و شخصیت های مشهور جهان اسلام و علماء فقهی همانند الشیخ حمود بن عقلاء الشعیبی رحمه الله وقائدین مشهور جهادی همانند شیخ اسامه رحمه الله این امارت شرعی را تائید و با آن بیعت نموده اند، همچنین امارت اسلامی تاکنون بر همان موقف اسلامی خود ثابت ایستاده است و همدردی تمام پیروان اهل سنت و الجماعت دنیا را با خود دارد و هیچکس چیز قابل اعتراضی بر آن نیافته است، بنابر این هیچگونه ضرورت شرعی و عقلی برای گشودن صف موازی جدید در افغانستان دیده نمیشود.

-٢بر اساس شرع و عقل سلیم، انسان مکلف است که بخاطر مصالح علیای شرعی و دنیوی جامعهء اسلامی خود، راه و روشی را انتخاب کند که سبب تحفظ و موفقیت آنان گردد، امارت اسلامی تمام مصالح شرعی و دنیوی خود را در وحدة الصف می بیند و فعالیت هایی تحت نامها و بیرق های دیگر را به زیان مصالح اسلام، مسلمانان و جهاد میداند.

امارت اسلامی افغانستان از نگاه اخوت دینی، خیرتانرا میخواهد و در امورش فکر دست اندازی ندارد، بالمقابل از شما نیز امید و انتظار عمل بالمثل دارد و از نگاه رشتهء اخوت اسلامی تنها امید خیرخواهی از انان را دارد، با توجه به وضعیت جاری جهاد در افغانستان خیر و صلاح اسلام و مسلمانان تنها در اینست که جهاد در افغانستان تنها زیر صف واحد ادامه یابد.

-۳امارت اسلامی افغانستان در جریان مقاومت جهادی خویش زیر یک بیرق و قیادت واحد ، شکست کمرشکنی به آمریکا و دوستان آنان داده است، بغیر از شهرهای کشور ، مابقی تمام ساحات ومناطق از اشغال کفری، شرک و خرافات دیگر رهایی یافته و بعد از دو دهه مقاومت و استحکام ، صف متحد امارت اسلامی در منطقه و جهان در مقابل دنیای کفر به یک حقیقت الهام بخش تبدیل گردیده است، آمریکائی ها و دیگر دشمنان اسلام بسیار تلاش و کوشش کردند و می کنند که با متلاشی کردن این صف واحد ، زمینهء کامیابی و بقاء برای اشغال خود را مساعد سازند، اما امارت اسلامی هماتگونه که در عرصهء نظامی به آنان شکست داده است، به همین منوال در نگه داشتن صف واحد و مرصوص خود ، پلانهای آتی و تخریبی آنان را خنثی نموده است، پس اگر خدای ناخواسته در این مرحله حساس که از قبل با دسایس بسیار کفار مواجه هستیم، رفقائ شما نباید چنین اقدامی انجام دهند که قوماندهء مجاهدین تقسیم گردیده ، رخنه در صف مجاهدین ایجاد شده و امید و آرزوهای دشمنان ما که همانا فاصله انداختن و ایجاد رخنه در امارت اسلامی است، صورت پذیرد.

-٤جدا از افغانستان بسیاری از کشورهای جهان اسلام، شکار توطئه های ظالمانهء آمریکائی ها بوده و به شکلی از اشکال تحت اشغال آنان قرار دارند، اما از آنجائیکه تاکنون مسلمانان در این کشورها کدام کامیابی و موفقیت ملموسی حاصل ننموده اند، دلیلش تفرقهء آنان و عدم وجود قیادت واحد میباشد، بناءً بخاطر اینکه فتنهء بی اتفاقی در افغانستان ایجاد نگردد، امارت اسلامی اجازه دادن به فعالیت های جهادی در یک صف واحد امارت اسلامی در افغانستان را یک مصلحت عظیم دینی و جهادی میداند و ایجاد نمودن صف و گروه دیگر در مقابل آن را عملی بر خلاف جهاد، مجاهدین و مصالح اسلامی می داند.

-٥امارت اسلامی بر خلاف جهان کفر، شرکت و بدعت فعالیت های جهادی خویش را در روشنائی احکام کتاب الله و سنت نبوی به پیش میبرد، مصالح شرعی و اسلامی برایش مهمتر از هرچیز دیگر است و برای تحقق آن به حمایت و همکاری مادی و معنوی مسلمانان جهان ضرورت دارد، بناءً از شما محترمین آرزومندیم که در مورد امارت اسلامی افغانستان معلومات خود را از آن منابع بدست نیاورید که در اینجا بخاطر عوامل مختلف از امارت اسلامی مایوس گردیده اند و یا هم بخاطر ارتکاب جرائم در صف جهادی از این صف مقدس رانده شده اند، بلکه مستقیما با رؤسای مسئول امارت اسلامی ، سخنگویان رسمی و شناخته شدهء مطبوعاتی معلومات و اطمینان خود را حاصل نمائید، تا اطمینان یکدیگر بیشتر گردد.

-٦امارت اسلامی افغانستان، شکست آمریکا و ناتو در افغانستان را شکست نیروهای صلیبی در تمام دنیا می داند، و این دستاورد و موفقیت بزرگ را الله ﷻ از برکت اخلاص، توکل، صبر و وحدت مجاهدین امارت اسلامی به آنان ارزانی داشته است، و مقام رهبری و مجاهدین امارت اسلامی بیشتر از این از دربار الله تعالی خواهان موفقیت و حُسن انجام این راه جهادی هستند، و از مسلمانان و نهضت های جهادی امید دارند که برای موفقیت جهاد امارت اسلامی حمایت و همکاری همه جانبه، نمایند نه اینکه با پاشیدن تخم نفاق در صف جهادی، مجاهدین را ناکام و امت رنجدیده و ستمکشیده را از خوشی های شکست کفر محروم نمایند.

-۷امارت اسلامی افغانستان موفقیت های مهم و عظیم جهادی علیه متجاوزین صلیبی در افغانستان را اولاً به نصرت الله ﷻ و بعد از آن در نتیجهء زحمات صدها هزار شهید، زخمی، اسیر، یتیم و بیوه زن بدست آورده است.

تمام این قربانی ها را زیر یک قومانده و یک بیرق در یک صف واحد تقدیم نموده است، و اکنون اگر خدای ناخواسته با متفرق شدن صف جهادی در میان مجاهدین اختلافات درونی ایجاد گردد، تمام

این قربانی ها و دستآوردها، شکار این اختلافات خواهند شد و مسلمانان رنجدیده از ثمـرهء آن محروم می شوند، این یک حقیقت روشن تر از آفتاب است که امارت اسلامی افغانستان در نتیجهء درخشش گذشتهء خویش، قربانی های عظیم در راه اسلام و سیاست مدبرانهء اسلامی ، محبوبیت و مقبولیت فراوانی نه تنها در افغانستان بلکه در تمام جهان اسلام دارد. و اگر خدای ناکرده در اینجا برای امارت اسلامی از سوی افرادی که خود را منسوب به شما میدانند کدام جنجال و دردسری ایجاد گردد، تمام مسلمانان جهان از شما ناراحت و ناخشنود خواهند شد.

-۸درحالیکه در گوشه و کنار جهان تنظیم های اسلامی و شخصیت ها در شرایط بسیار سخت قربانی های فراوانی داده اند و هرکدامشان دارای دستآوردهای کم وبیش هستند، برای خود نظم دارند و از خود طرفدارانی دارند و همهء اینها را در سختی ها و با تقدیم قربانی ها بدست آورده اند، پس مشورهء ما به شما اینست که در هیچ جای دنیا برای حرکت های اسلامی چنان شرایطی را ایجاد ننمائید که خدای ناکرده خدمات آنان متاثر گردیده ، نظم شان خراب شده و یا در اختلافات داخلی درگیر شوند و بلاخره در تفاوت بر سر طرزالعمل و یا اختلاف در نظریه ، سخن به خونریزی بکشد، خداوند متعال همهء ما و شما را از چنین حالتی درامان داشته باشد، شما باور کنید که اینگونه حرکات به فعالیت و شهرت شما زیان جبران ناپذیری وارد میکند. سبب شهادت مسلمانان خصوصا مجاهدین و افراد مصلح می گردد، ورثائ شهداء مایوس میشوند و فرصت استعمال حربه های گوناگون بدست دشمنان داده میشود.

-۹برای تان بهتر معلوم است که در مدت چهاردههء گذشته در افغانستان نابسامانی ها، اختلافات و کشمکش های قومی، سمتی، تنظیمی، مداخلات مسلسل قوتهای کفری و جنجال ها و دشمنی های دیگری گذشته است و هم اکنون نیز تعداد کثیری هستند که عقده ها و خصومت های این دشمنی را در سر و ذهن می پرورانند، از اینرو اینجا در افغانستان به کرات افرادی در لباس مجاهدین قد علم کردند تا جهاد مقدس را بدنام سازند، اما از انجائیکه از یک طرف نصرت الله تعالی با مجاهدین همراه بود و از سوی دیگر مسئولین امارت اسلامی با تمام باشندگان این سرزمین آشنا و تجارب پُختهء جهادی دارند، کسانی که میخواهند جهاد را بدنام سازند اینگونه افراد را بسیار زود شناخته و از صحنه بیرون نموده میتوانند. تاکنون الله تعالی مارا بخوبی از این جنجال محفوظ داشته است. خدای ناکرده، خدا نکند که اینگونه افراد بدچهره و مُغرض سبب دوری شمایان و در افغانستان از عدم شناخت و آشنائی آنان زیر نامـتان استفادهء سوء نکنند، از اینرو ما بازهم اصرار و پافشاری می کنیم که شما بیشتر به این خطر متوجه گردید تا در اینجا جدا از تشکیلات امارت اسلامی صف دیگری ایجاد نگردد.

همانگونه که رساندن جهاد به هدف خود(اعلای کلمة الله) فریضهء شرعی تمام مسلمانان خصوصاً مجاهدین است، پس شمایان هم باید از نگاه مکلفیت دینی خود، با برادران امارت اسلامی در امور وحدت و تقویهء آنان همکاری نمائید، نه اینکه خدای ناکرده از جای دوری، چنان تصامیمی اتخاذ کنید که در اینجا مایهء ناراحتی و ناخشنودی بزرگان مجاهدین، علماء دین و هزاران تن مجاهدین مصلح گردیده و سبب از بین رفتن محبت و اخلاص آنان نسبت به شمایان شود و امارت اسلامی در اینجا بخاطر محافظت از آرمانهای پاک بیش از دو میلیون شهدای مبارک در جریان چهاردهه برای دفاع از دستآوردهای خود دست به عکس العمل بزند.

و صلّی الله علی نبیّنا محمد وعلی آله و صحبه أجمعین.

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

الحاج ملا اخترمحمد منصور

سرپرست شورای رهبری ونائب امارت اسلامی افغانستان

۱۴۳۶/۸/۲۹هـ ق

مفتي حبيب الله قاسمي

# نامتو مسلمان فاتحین [۳]

د خراسان فاتح

عبدالله بن عامر رضی الله عنه

زوکړه: (۴ - هـ ۶۲۵ م مړینه: ۵۹هـ ۶۷۹ م)

## [۸] په خراسان کې غزاګانې

حضرت ابن عامر رضی الله عنه دخپل ولایت پرمهال زیات فتوحات هم کړي وو چې له همدې امله یې عرب مورخین د نوموړي پېژندنه په دې تورو کوي: (( الَّذِي افْتَتَحَ إِقْلِيْمَ خُرَاسَانَ )).

ژباړه: دا هغه نامتو صحابي و چې دخراسان سیمه یې فتحه کړې وه.

حضرت حسن بصري رحمه الله روایت کوي چې: حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه په خراسان کې غزاګانې کړې دی او د لښکر مشري یې دابن بدیل پرغاړه وه، نوموړي لومړی اصفهان ته ولاړ او د هغه ځای خلکو ورسره روغه وکړه، له هغه وروسته خراسان ته مخه کړه او د لښکر مشري یې احنف بن قیس رح ته وسپارله. دخراسان ځیني نوموړي په جنګ او ځیني یې د روغې له لارې ونیولې.

امام زهري رح وایي: یزدګر له یولک لښکر سره مروې ته راغی او اصطخر سیمې باندې یې خپل سړی مشر وټاکه او دغه مهال ابن عامر رضی الله عنه ورته راغی او له سخې جګړې وروسته یې دغه سیمه ونیوله. دغه مهال یزدګر هم ووژل شو او څومره لښکرې یې چې په مروه کې وې هغه هم ټول ووژل شول. د نوموړي په ولایت کې فارس امپراطور ((کسرا)) هم ووژل شو.

نوموړي خپلې لښکرې سجستان ته هم ولیږلې هغه یې فتحه کړ اودغه راز دخپلو قوماندانو په مرسته یې ((دوار)) ښار[۱] ((مروه رود)) بیا ((سرخس)) دغه راز ((طوس))، ((طخارستان)) ((نیشاپور))، ((بلخ)) او ((طالقان)) او ((فاریاب)) ښارونه اولویې سیمې یوپه بل پسې فتحه کړې.

## [۹] د فتوحاتو د شکرانې حج

حضرت عبدالله بن عامر رضی الله عنه چې په خراسان کې زیات فتوحات وکړل نو ددغو فتوحاتوشکرانه یې وه غوښتل چې حج وکړي.

---

۱ الاعلام دزرکلي مخ.

خوله دې سره یونوی کار هم وهغه داسې چې احرام یې ډیر لېرې له نیشاپور څخه وتاړه ځکه نوموړي ویل : «زه بهددې ستر فتوحاتو په بدل کې حج کوم اود شکرانې په خاطر به احرام له نېشاپوره تړم». نوهغه و چې نوموړي له نیشاپور څخه احرام وتاړه . ۲

## [۱۰] له نیشاپوره پراحرام تړلو دحضرت عثمان رضی الله عنه نیوکه

دنوموړي پردې احرام تړلو حضرت عثمان رضی الله عنه نیوکه وکړه ، دنوموړي داحرام تړلو پېښه امام بخاري رحمه الله هم دکتاب الحج د۳۳باب کې له سند پرته راخپستې ده اوتوري یې داسې دي : وَكَرِهَ عُثْمَانُ - رضی الله عنه - أَنْ يُحْرِمَ مِنْ خُرَاسَانَ أَوْ كَرْمَانَ .

ژباړه : اوحضرت عثمان رضی الله عنه داکار ښه ونه باله چې سړې دې له خراسان اویاهم کرمان څخه احرام و تړي .

حافظ ابن حجر رح دفتح الباري دپنځم ټوک په ۲۱۰مخ کې لیکي : ددغې پېښې سند دسعید منصور په سنن کې شته او پېښه داسې وه چې : حسن بصري روایت کوي چې : عبدالله بن عامر رضی الله عنه چې له خراسان څخه احرام تړلی و کله چې حضرت عثمان رضی الله عنه ته ورغی هغه په دې کار سره ملامت کړ اودغه کار یې ښه ونه باله .

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې ملامتې سبب بیانوي اولیکي چې: کیدای لامل د اوي چې نوموړي دحج له میاشتو دمخه د حج احرام تړلی و ، ځکه د خراسان اومکې ترمنځ یوه میاشت مزل و .اویاهم کیدای شي دحضرت عثمان رضی الله عنه دخپکان لامل داوه چې نوموړي له میقات دمخه احرام تړلی و چې ورته اړتیا نه وه اوعلامه عیني رح لیکي : کیدای شي دحضرت عثمان د ملامتولو سبب هغه داو چې : داهسې بې ځایه کړاو اوتکلیف پرځان تیرول دي .۳

له دې پېښې موږ ته څرګندیږي چې صحابه وو رضی الله عنهم ددین په هکله څومره محتاط وو اوکومه زیاتونه به یې چې په دین کې ولیدله له دې پرته چې څوک پرې خپه اوکه یه نو هغه خبره به یې خامخا کشرانو ته یادونه کوله اوپه دیني معاملاتو کې به یې کشران خپلې تېروتنې ته ځیر کول .

## [۱۱] د بصرې دوهم ځل والي کېدل

حضرت معاویه رضی الله عنه نوموړی په دوهم ځل د بصرې والی وټاکه چې دری کاله یې د دغه ولایت چارې سرته ورسولې او بیا یې په خپله خوښه دغه ولایت پرېښوده .اوپه کور کېښناست .

## [۱۲] د ژوند وروستي کلونه

---

۲ حافظ ابن حجر په فتح الباري کې داحمدبن سیار په حواله دغه خبرې دمروه له تاریخ څخه راخپستي دي .
۳ عمد القاري : نهم ټوک ۱۹۲

حضرت ابن عامر رضی الله عنه د ژوند وروستي کلونه یې په چوپتیا او خاموشي کې تېر کړل بیایي په هېڅ راز سیاسي خوځښتونو کې ګډون وه نه کړ ۴ دغه مهال یې زیاتره پاملرنه تعمیري اوودانیزو کارونو ته اوښتې وه. له همدې امله نوموړي د بصرې زیات کورونه اوځمکې یې په بیه واخیستلې او لویه لاره ترې نه جوړه کړه.

## [۱۳] : مړینه

د ژوند په وروستیو کلونو کې یې په مدینه منوره کې استوګنه غوره کړه او دغه نامتو فاتح په ۵۹ هجري کال کې په مکه معظمه کې وفات او د عرفات په میدان کې خښ شو.[۵]

د نوموړي له وفات څخه چې حضرت معاویه رضی الله خبر نو وې ویل: له ده وروسته به موږ پرچا باندې ویاړو ؟ اوپر چا به نازیږو ؟؟[۶] الله پاک دې ورباندې ورحمیږي.[۷]

---

۴ الاعلام:

۵ الاعلام: سیر اعلام النبلاء : دریې ټوک ۲۱مخ.

۶ سیر اعلام النبلاء: ۳/ ۲۱ او د ابن سعد طبقات : ۵ / ۴۹.

۷ ددغه نامتو صحابي د پیژندنې له پاره لاندې کتابونه کتلای شئ.

لومړی: دامام ابن سعد رح طبقات : ۵ / ۴۴.

دوهم: د حافظ ابن حجر رح تهذیب التهذیب: ۵ / ۲۷۲.

دریم: د امام ذهبي رح سیر اعلام النبلاء: ۴ ټوک ۸۷- ۹۷مخونه.

څلورم: د امام ذهبي رح تاریخ الاسلام: ۲ / ۲۲۲.

پنځم : د امام ابن اثیر رح الکامل:: ۳ / ۲۰۲.

شپږم: د استاد زرکلي رح الاعلام: ۱/ ۲۷۲.

اوم : د امام ابن اثیر رح اسد الغابه: ۳ / ۱۹۱.

اتم: المستدرک دحاکم رح:: ۳ / ۲۳۹.

نهم: د امام ابن عبدالبر رح الاستیعاب: ۹۳۱مخ.

لسم: د امام ابن عساکر رح تاریخ:: ۹ / ۲۲۹.

یولسم: د علامه ابن خلکان رح وفیات الاعیان ۲ / ۴۹۹.

دولسم: د علامه بلاذری رح فتوح البلدان: ۳۹۶مخ

دیارلسم: د امام طبري رح تاریخ: ۵/ ۱۷۰.

څوارلسم: د حافظ ابن حجر رح الإصابة: ۳/ ۱۹.

پنځلسم : د حافظ ابن کثیر رح البدایه والنهایه: ۸ / ۸۸،

شپاړسم: دامام ابن العماد رح شذرات الذهب: ۱ / ۳۲ و۲۵.

# فیمینېزم په افغانستان کې

## تصادف که پلان شوې پروژه؟

(کامران)

د ۲۰۰۱م کال د سپټمبر یوولسمې له پېښو وروسته په افغانستان کې نوی سیاسي باب پرانیستل شو. دغه مهال ټولنه کې داسې نوی فرهنګ معرفي شو چې پخوا یې مخېینه نه وه لیدل شوې. افغانستان په دې پړاو کې د یو لړ نوو ټولنیزو او سیاسي مفاهیمو د معرفۍ او سیالۍ ډګر شو .د بهرنیانو او مرسته کوونکو هېوادونو له خوا د راغلو مرستو د کارونې یوه برخه په ټولنه کې د نوي فرهنګ ملاتړ او وده وه. نوي سیاسي نظام د ځینو مثبتو کارونو ترڅنګ د نړیوالو د فشار له امله یو لړ داسې خطرناک مفاهیم او افکار چې د افغانستان له ملي او دیني اصولو سره په ټکر کې ول هم رامخې ته کړل چې له هغې جملې څخه د جنډر او فیمینیزم مفاهیم دي.

### فیمینېزم څه شی دی؟

فیمینېزم د شلمې پیړۍ د پنځوسمو کلونو په وروستیو کې په امریکا کې د یو منظم خوځښت په توګه را ښکاره شو. دا هغه فکري، سیاسي، ټولنیز او د بیلا بیلو افکارو او تګلورو پر بنسټ ولاړ خوځښت دی چې هدف یې ټولنیز او فرهنګي بدلونونه را منځ ته کول دي او د نر او ښځې ترمنځ د اړیکو د څرنګوالي د بدلون لپاره کار کوي، ستراتیژیکه موخه یې د ښځې او نر تر منځ بشپړ مساوات راوستل دي. داسې مساوات چې لومړی خو د پلي کېدو وړ نه دي او که عملي هم شي، ټولنه به له داسې کړکېچ سره مخ کړي چې ټولنیز نظام په ټپه وردوي. په دې اړه دوی د نر او ښځې دواړو جنسونو تر منځ د دښمنۍ او کرکې اچونې څخه کار اخلي، او بالآخره د دین ، ژبې، تاریخ او کلتور نوې بڼه رامنځ ته کول غواړي.

فیمینیزم په هکله دا لاندې وګورئ: http://www.eslahonline.net/?p=۱٦٦

### جنډر څه ته وایي؟

همدارنګه جنډر د نارینه او ښځینه تر منځ هغه اجتماعي، سیاسي، فرهنګې او دیني اړیکي دي چې د تاریخ په اوږدو کې دانسان له خوا رامنځ ته شوي دي.

### د جندر مساوات څه ته وایي؟

د جندر پلویان وايي چې د جندر د مساوات معنا دا ده چې د نارینه او ښځینه تر منځ د حقوقو او مسؤولیتونو ویش باید د جنس – نارینه یا ښځینه توب – پر بنسټ ونشي، بلکې دواړو ته باید د ژوند په ټولو ډګرونو کې سره برابر فرصتونه ورکړل شي، او په دې توګه دغه خوځښت، لکه څنګه چې د هغو توپیرونو پر ضد مبارزه کوي چې د ټولنې لخوا د نارینه یا ښځینه لپاره د حقوقو یا دندو په توګه ټاکل شوي دي ، په همدې ډول دین هم یوه ټولنیزه پدیده ګڼي، او د دین لخوا اېښودل شوي توپیرونه هم نه مني، او پر ضد یې کلکه مبارزه کوي.

د جنډر مساوات ظاهراً ښه زړه راښکونکی شعار دی. لومړی، دوه جنسونه، له خاصو ځانګړنو سره نه شو کولای پرتله کړو. لکه څرنګه چې د دوی جوړښت، فطرت او طبیعتونه سره بېل دي، همداسې یې مسوولیتونه هم د وړتیاوو په پام کې نیولو سره متفاوت وي. مسلمان مفکرین تل پر دې ټینګار کوي، چې اسلام حقونه برابر وېشلي، هغه څه چې اسلام یې برابر نه وېشي د مسوولیتونو حجم او شکلونه دي .یو نارینه نه شي کولای د ښځې دندې په ښه ډول ترسره کړي او همدا راز یوه مېرمن د نارینه وو مسوولیتونه نه شي ترسره کولای.

د جنډر په هکله دا لاندې لیکنه وګورئ: http://www.eslahonline.net/?p=۱۹۹

## د مېرمن شېنن ګېلپن پروژه څه ده؟

مېرمن شېنن ګېپلن ۴۴ کلنه امریکایۍ ترېنره او د "افغان بایسکېلونو" فلم پروډیوسره ده چې فلم یې غالبا لا رسنیو ته نه دی راوتلی. ګېپلن په افغانستان کې د هغې پروژې مسووله ده، چې هڅه کوي افغانو نجونو ته داسې روزنه ورکړي چې وکولای شي دغه امریکایۍ مېرمن له خپلو افغانو نجونو زده کوونکو او نارینه وو ترېنرانو سره د افغانستان په غرونو کې بایسکل چلوي. نوموړې په ۲۰۱۳ کال کې د نیشنل جیوګرافیک چېنل له خوا خطر منونکې ښځه هم ګڼل شوې وه. نوموړې د نړیوالو فیمنیستانو غړیتوب لري او د کرزي حکومت څخه یو څو کاله وروسته ښځو ته حقوقو ورکولو په بهانه له امریکا څخه افغانستان ته راغله او هلې ځلې یې شروع کړې ترڅو افغاني میرمنې بایسکل چلولو ته وهڅوي.بایسکل وچلوي. په افغاني ټولنه کې د ښځو بایسکل چلول دود نه دی. آغلې ګېپلن هڅه کوي، د نارینه وو ترېنرانو په واسطه بایسکل چلوونکې نجوني وروزي تر څو په افغانه ټولنه کې دا نوی فرهنګ دود شي. دغه امریکایۍ مېرمن له خپلو افغانو نجونو زده کوونکو او نارینه وو ترېنرانو سره د افغانستان په غرونو کې بایسکل چلوي. نوموړې په ۲۰۱۳ کال کې د نیشنل جیوګرافیک چېنل له خوا خطر منونکې ښځه هم ګڼل شوې وه . نوموړې د نړیوالو فیمنیستانو غړیتوب لري او د کرزي حکومت څخه یو څو کاله وروسته ښځو ته حقوقو ورکولو په بهانه له امریکا څخه افغانستان ته راغله او هلې ځلې یې شروع کړې ترڅو افغاني میرمنې بایسکل چلولو ته وهڅوي.

ګیلپن له ۸ کالو راهیسې په افغانستان کې په مختلفو پروژو کار کوي چې اصلي محور یې د ښځو حقوق مربوط دي، دغه پروژې د امریکا او ملګرو ملتونو لخوا حمایه کیږي چې یو له دغې پروژې څخه د (Mountain to Mountain) بایسکل چلولو یې ستره پروژه ده.

په ۲۰۱۲ کې نوموړې چې کله خبره شوه چې افغانستان د نارینه وو بایسکلونو چلولو ټیم لري نو د کوچ سره یې د خبرو اترو وروسته د لس کلنو نه تر ۲۰ او ۲۵ کلنو پورې میرمنې پیدا کړې او دوی سره یې په شریکه دا پروژه شروع کړه .نوموړې میرمنې اوس د کابل په کوڅو کې په تنګ لباس او ګروپي شکل بایسکلونه چلوي.

شینن فکر کوي چې افغانستان د نړۍ یو له هغه هیوادونو څخه دی چې میرمنو سره پکې زیات ظلم کیږي او د میرمن اواز پکې نه اوریدل کیږي او نوموړې زیاتوي که افغاني میرمنې ازادي غواړي نو بایسکل چلول دې شروع کړي.

اوس پوښتنه دا ده چې ایا د اجتماعي انصاف لپاره بایسکل چلول اساسي حقوق جوړیدای شي؟

ایا داسې پروژې چې افغاني او اسلامي حساسیتونو خلاف وي، د ښځو حقوق جوړیدای شي؟

اصلي خبره دا ده چې اول باید یو فرد پدې پوه شي چې د هغه یا هغې اساسي حقوق څه دي؟

د دې لپاره چې په خپلو اساسي حقوقو پوه شو باید خپل ځان وپیژنو او پدې پوه شو چې کوم حقوق او په کومو حدودو کې هغه ترلاسه کړو. له ټولو مهمه مسله د تعلیم ده،

شینین ګلپین او دې میرمنی ته ورته نور باید پدې پوه شي چې هغه اساسي ستونزې چې افغانان او خصوصا افغاني میرمنی ورسره مخ دي هغه د تعلیم حق دی .ترڅو چې یوه میرمنه د تعلیم په جامو ځان سینګار نکړي د بایسکل چلول، د میرمنو تنګ لباس کول او یا اوسپنیز جاکټ اغوستل د هغوی حقوق نشي ورکولای.

شینین ګلپین او دې میرمنی ته ورته نور باید پدې پوه شي چې هغه اساسي ستونزې چې افغانان او خصوصا افغاني میرمنی ورسره مخ دي هغه د تعلیم حق دی. ترڅو چې یوه میرمنه د تعلیم په جامو ځان سینګار نکړي د بایسکل چلول، د میرمنو تنګ لباس کول او یا اوسپنیز جاکټ اغوستل د هغوی حقوق نشي ورکولای.

ترڅو چې د ټولنی یو فرد تعلیم ونلري نو هغه به څرنګه د ښه او بد ترمنځ تفکیک وکړي او پدی به څنګه پوه شي چې د هغه حقوق څه دي، څومره به ښه وای چې د بایسکلونو پرځای افغاني میرمنو ته د تعلیم زمینه برابره شوای وای.

خو شینین ګلپن دا کار هیڅکله نکوي ځکه چې د فیمنیستانو هدف د یوې ټولنې پرمختګ نه بلکې په ټولنه کې د ټولنی افرادو ترمنځ واټن زیاتول وي او بس.

بله مسله د یوې ټولنې په بلې ټولنې د خپلو اصولو د منلو ده. په امریکایې ټولنو کې د ښځې رول او کارونه د افغانستان په پرتله فرق کوي، افغاني ټولنه مسلمانه ده او امریکایې ټولنه مسلمانه نده نو بیا د یوې نا مسلمانې ټولنی په مسلمانې کې مداخلت او د هغوی دیني او ملي ارزښتونو ته په نه کتلو سره کار کول افغانانو ته د برداشت وړ ندي.

امریکا داسې یوه ټولنه ده چې هلته هره دوه دقیقو کې له یوې بې ګناه ښځې سره جنسي تیری کیږي چې میرمن شینی ګیلپن هم د همدې جنسي تیري ښکار شوی. د نورو مالوماتو لپاره لاندې لینک وګورئ:

https://rainn.org/get-information/statistics/frequency-of-sexual-assault

دغه فیصدي الحمدلله په افغانستان کې په نشت حساب ده نو میرمن شینن ګلپین افغان میرمنو ته هم د امریکا په سترګو ګوري. افغانستان داسې یو هیواد دی چې میرمنې په عمومي توګه د ډیرو نعمتونو څخه برخمنې دي. افغانې میرمنې هم د خور، د میرمن او مور په حیث بیل حقوق لري. د مثال په توګه په افغانستان کې د یوې مور قدر کول یو ځوی یا لور ته د ثواب او فخر خبره ده خو برخلاف په امریکایې او غربي ټولنو کې مور او پلار فقط د سپین ګیرتوپ په عمر کې خپل ځانګړی قدر او احترام لري کوم چې د اسلامي او افغاني ټولنو په پرتله هیڅ هم ندی. نور هم داسې بې شمیره مثالونه شته چې دا موږ ته څرګندوي چې افغاني میرمنې هغسې ندي څنګه چې غربیان او امریکیان فکر کوي.

په راتلونکې برخه کې به هڅه وکړو ترڅو ګلپین او د نورو فیمینستانو له هغه پروژو څخه پرده پورته کړو چې ګویا دوی د فیمینزم په خپرواي کې د نارینه وو ملاتړ لپاره هم کار کوي او د هغه سرویګانو او ویبسایټونو په هکله به هم خبره کوو چې دوی د همدې کارونو د پرمختګ لپاره په کار اچولي.



# ستر فتوحات

# او

## لويې سياسي لاسته راوړنې

حسن زوی

دسږني پسرلي په رارسېدو چې ددين او ملت نه ددفاع او دصليبي اشغال نه دهيواد دآزادۍ په لار کې دقوي او بااثره ګامونو پورته کولو او خارجي او داخلي دښمن ته دلويو ملاماتونکو ګوزارونو ورکولو لپاره اسلامي امارت دعزم په نوم پسرلني عمليات اعلان او دهېواد په لر او بر کې په پوخ عزم او لوړ مورال عملاً پيل شويدي ثوله نړۍويني چې ددې مبارکو جهادي عملياتو په برکت بې له استثناء دپلازمېنې په شمول دټول هيواد هره برخه دخارجي اشغالګرو ځواکونو او دهغوئ دګوډاګيانو لپاره داسې سره تبۍ ګرځولې ده چې ،،نه پاه رفتن او نه جای ماندن،، مصداق ګرځېدلې .

افغـان مجاهد او ميړنـي ملت چې دتـاريخ پـه اوږدو کـې تـل هرتجـاوزګر تـه دخپـل وحدت ښـکاره کولـو او حريت خوښونکي طبيعت په ځواک ملاماتونکي ګوزارونه ورکړيدي چې له امله يې دلته لويو تجاوزګرو خپلې ککرۍ خوړلې دي او اميدونه يې دخاورو سره خاورې شويدي رښتيا داده چې دعزم په نوم سږنو پيل شويو کامياب جهادي عملياتو په داسې لوړ شان او شوکت سره دا تاريخ ژوندی کړ چې ددښمن ټولې ماتې يې ولړزولې ؛ دعزم دعملياتو په جريان کې پردښمن دامارت دقهرمانو مجاهدينو دتندريزو ګوزارونو په نتيجه کې دخدای په فضل دقندوس نه تر نورستانه او له بدخشانه تر فراه او هلمنده فراخې سيمې او غونډې غونډې ولسوالۍ فتحه شوې که دانصاف په نظر وکتل شي نودا ډېر ستر تاريخي فتوحات دي.

په خولې خوبه داخبره وړه خبره ښکاري چې په شمال زون کې ولسوالۍ فتحه کېږي او لويې سيمې دمجاهدينو تر واک لاندې راځي خو په حقيقت کې دا ډېره لويه او نه يواځې دافغانانو بلکې دنړۍ دټولو مسلمانانو لپاره هيله بښونکې او سترې خوښۍ خبره ده چې دامريکا په مشرۍ کې ټول صليبي زبرځواکونه او ددوئ ګوډاګيان دې دنړۍ دترټولو عصري ټېکنالوژۍ او پرمختلفو جنګي وسايلو دشتون او سره دټولو کوښښونو دخپلې قبضې لاندې سيمې دشمېر په لحاظ دکمو او دوسايلو په لحاظ دکمزورو طالب مجاهدينو نه ونشي ژغورلای.

پدې چې څومره زياته خوښي ښکاره شي او دالله تعالی څومره زيات شکر اداشي کم دی



قابضو بهرنو ځواکونو او ددوئ ګوډاګيانو چې دهيواد شمال دځانونو لپاره مصئونه ساحه ګڼله او داسلامي امارت نفوذ يې يواځې په جنوب او لويديځ پورې ترلو دهيواد په شمال کې دخارجي اشغالګرو او مزدور رژيم دلاس نه دګڼو سيمو او ولسواليو وتل او دمجاهدينو لاس ته يې لوېدل دمجاهدينو هغه ستر بريا ليتوب دی چې دخارجي او داخلي دښمن لوړ رتبه فوځي او ملکي مشران پرې هم په لوېدلې مورال اعتراف کوي او ښه په روښانه ټکو وايې چې دهېواد په مهمو او ستراتيژيکو سيمو دطالبانو قبضه ډېره خطرناکه ده.

دا فتوحات دومره ستر او روښانه دي چې خارجي او داخلي دښمن يې بيخي له توجيه نه عاجز دي او په نړۍ کې يې دډېرې سترې رسوايۍ سره مخامخ کړيدي ؛ نورچې هيڅ ندي ورپاتې اولار لودن ترې بېخي خطادی نوددې لباره چې ځانونو ته د اوروپوزه کېږدي ددې سيمو او ولسواليو دبېرته نيولو دروغجنې دعوې کوي چې دسيمې دوګړو له لورې ددوئ ددې دعوو دکلک ترديد له امله دوئ په دې هڅو کې هم ناکامېږي.

دمجاهدينو ددې سترو فتوحاتو او ددښمن دستر شکست نه پس شنونکي ښه په زغرده وايې چې په لږې مودې کې دطالبانو دادومره سترې لاسته راوړنې ددې دليل دی چې دبهرنو ځواکونو په مقابل کې دولس کرکه او په ګوډاګۍ اداري يې بې باوري اوج ته رسېدلې ده او پدې خبرې کې اوس دشک ځای پاتې نه شو چې اسلامي امارت په ټول هېواد کې دولس دپراخه ملاتړ نه برخمن دی ؛ که ولس مجاهدينو ته ځای ورنکړي او ترشا يې نه وي ولاړ نو څرنګه به دا دومره فتوحات وکړای شي ؟



بهرنـي مکار دښـمن پـه تېـرو ۱۴کلونـو کې دافغانـانو دتجزيې ډېرې هڅې وکړې څوک به يې موافق ګڼلو او څوک به يې مخالف ؛ دجنوب او ختيځ سيمې به يې خطرناکې او دشمال سمت بـه يـې دامـن سيمه ګڼلـه دادافغانـانودتجزيې ډېـره خطرناکـه هڅـه وه خولـه نېکـه مرغه چې له هماغه پيل نه ناکامه وه ؛ افغانـانو چـې دتـاريخ پـه اوږدو کې تل دخارجي دښمن په مقابـل کې خپـل وحدت ساتلی دی ددې سترصليبي دښمن په مقابـل کې يې هم خپـل وحدت لـه لاسـه ورنکړ او سره لـه ټولو کوښښونو دښمن پدې ونه توانېد چې افغانان په قومونو، ژبو او سمتونو وويشي .



داسمه ده چې پر افغانستان دیرغل نه وړاندې چې دامریکایانو سره په پنجشېرکې دوطن پلورلوټرون لاسلیک کېدلو نودوې وطن پلورونکو ټولوټراودشمال سره وخودشمال عام مسلمانان پردین اووطن مین مسلمانان دي دوئ چې څرنګه دروسانو په مقابل کې خپله کرکه ښکاره کړې وه دصلیبي اشغالګروپه مقابل کې یې هم خپله کرکه اومېړانه ښکاره کړه چې دادی دهمدې مېړانې په برکت اوس سترفتوحات رامنځته اوددښمن امېدونه دخاوروسره خاورې شول .

داسلامي امارت نه دولس ملاتړ او په ګوډاګی اداري دولس بې باوري اوس دومره روښانه ده چې نړی ته ترې هم نور سترګې پټول ناشوني دي او مجبوراً دعمل په ډګرکې پدې حقیقت اعتراف کوي چې دولس اعتماد یواځې په اسلامي امارت دی او یواځې اسلامي امارت ددې حقدار دی چې دولس نمایدګي وکړي او دافغانستان دستونزې دحل په اړه یې نظر ته رجوع وشي نو ځکه یې دسیاسي دفتر مشران دپګواش او اوسلو په څېر نړیوالو کانفرنسونو ته وربلل.

دسیاسي چارو دکارپوهانو په اند دنظامي ډګر ترڅنګ په دیپلوماتیک ډګر کې دادسلامي امارت ډېره لویه لاسته راوړنه او ددښمن سیاسي او اخلاقي شکست دی .

داسلامي امارت دداسې سیاسي لاسته راوړني پرمهال به علني دښمن او هم دلستوني مارانو پراسلامي امارت دولس او مسلمان ملت دبدګمانه کولو ډېرې هڅې کولې او دا تبلیغات به یې کول چې طالبان دخپل موقف نه تېرشول او یایې دجهادي اهدافو سره جفا وکړه،خو دديپلوماتیک اوسني پرمختګ سره چې یوځای نظامي ډګر هم ښه ګرم دی او دخدای په فضل لوی فتوحات رامنځته شویدي نو دوئ ددغې پوچو تبلیغاتو جرأت هم ونشو کولای.

دا چې له یولورې دبهرنو اشغالګرو او ګوډاګیانو له لورې پردې مظلوم ولس ډېر ستر وحشتونه او ظلمونه روان دي اوله بلې خوا دښمن دخپلو مکارو رسنیو پرمټ خپل ځانونه سپین بازان ګرځولي دي او نړی ته مجاهدین ظالمان او وحشیان معرفي کوي او پدې اړه دنړیوالو اذهان مسخ کوي اسلامي امارت دحقایقو نه دنړی خبرول ډېر اړین او ګټور بولي او دداسې هر نړیوال ستیج نه دغه ګټه پورته کول دځان لپاره ښه چانس بولي او ترې ګټه پورته کوي، اسلامي امارت ته چې هروخت موکه په لاس ورغلی ده اومناسب یې ګڼلي دي نوپه همدې ارادې یې په نړیوالویادسیمې په سطح جوړوشویو کانفرانسونو او مجالسو کې ګډون کړیدی او په راتلونکې کې به هم همدا هدف تعقیبېږي.

لله الحمد چې ددښمن ټول تبلیغات اوس ناکام دي ولس او مسلمان ملت سل په سلو کې مطمئن دی چې په نړیواله کچه دداسې هڅو اوسرګرمیو ترشا نور هیڅ اهداف نشته طالبان دخپل موقف نه تېرېدونکي دي ؛ نه یې دعالي اهدافو سره جفا کړیده او نه به یې وکړي ان شاءالله تعالی

# د طواغیتو یو ستر شباهت!

محمد جمال خطیب

د الله جل جلاله نظام داسې جوړ دی، چې د نړۍ طاغوتان د تاریخ په مختلفو پړاوونو کې سره ډېر ورته تېر شوي. یو ستر شباهت چې ان له فرعونه رادېخوا تر ننه پورې په کې زورواکان سره ورته دي، د هرې ټولنې د کبرجنو د تصویر قدرِ مشترک ګڼل کیږي.

دا مرض له غرور او "ذاتي انطواء" زیږي. ذاتي انطواء دا معنا چې یو څوک په خپل شخصي او اجتماعي ژوند کې له خپل ذاته څرخي. هر څه کې ورته خپل ځان مهم وي او دا له هر څه وړاندې د ستر نفاق نښه هم ده. الله جل جلاله د منفقانو په اړه فرمايي: { وَطَائِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ}. یوه ډله ده ځانونه ورته ډېر مهم ښکاري، په الله جل جلاله نا حقه او جاهلي ګمانونه کوي.

د همدې بېکاره مرض پایله کې غرور او ذاتي انطواء زیږي او انسان داسې څه ځان ته غواړي او له نورو یې سلبوي، چې د ده حق نه وي او پر هغوی یې ورکړه لازمه نه وي. دا مرض هله وبایي صورت اخلي، چې کله د واک، شان او شوکت نشه سر ته وخیژي.

دا خلک د خپل واک او هیلې د پر ځای کولو لپاره تر ټولو مخکې او تر ټولو ستر جنایت دا کوي، چې حقایق مسخ کول غواړي، واقعیتونه بدلول غواړي، خو حق چرته مسخ کیږي او واقعیت چرته بدلیږي! خبرې په خپل حقیقت نه حملوي، بلکې کوښښ کوي، چې په خپل کار و زیار کې له تزویره کار واخلي.

دا کار د فرعون په سیاست او واک کې تر ټولو ډېر ښکاره دی. موسی علیه السلام دعوت ورکړ، چې ي، الله ومنه او د هغه عبادت وکړه. ده که څه هم موسی علیه السلام سره



کافي بحث وکړ، خو طبعي ده، چې د فرعون خبره ماته ده، ځکه چې خلاف العقل ده، نو
یې دا کوښښ ونه کړ، چې خبرې ته دلایل وګوري، علماء وروغواړي، بلکې کوښښ یې
وکړ، چې حقیقت بدل کړي.

په موسی علیه السلام یې دعوه وکړه، چې ته خو ساحر یې او بیا خلکو ته مخاطب
شو، چې ای خلکو !دا دواړه ورونه ساحران دي او غواړي، چې تاسې له خپلې خاورې او
وطنه وباسي .فرعون وایي :{ قَالَ لِلْمَلَإِ حَوْلَهُ إِنَّ هَذَا لَسَاحِرٌ عَلِيمٌ * يُرِيدُ أَنْ يُخْرِجَكُمْ مِنْ
أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ} یعنې فرعون خپلې شورى ته وویل، چې سړى خو ډېر پوه
ساحر دی او مطلب یې دا دی، چې له دې ځایه مو وباسي .مشوره مو څه ده؟

د فرعون دربار د ده له چاپلوسو او بړېڅو ډک و .هیچا داسې مشوره ورنه کړه، چې
صیب دا خلک بل څه وایي، ته یې خبره واوره، دا خبره قابلِ غور ده، بلکې هغوی هم په
واز کومي دا خبره بدرګه کړه، نو ځکه بل ځای قرآن کریم دا خبره دوی ته منسوبوي :{ قَالَ
الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هَذَا لَسَاحِرٌ عَلِيمٌ * يُرِيدُ أَنْ يُخْرِجَكُمْ مِنْ أَرْضِكُمْ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ}.

دا د کبرجنو او زورواکو عادت وي او همدا عادت ټول متکبرین سره تړي، چې حقه خبره
نه اوري او د داعي خبره کوي، چې د حق معکوسه تعبیر کړي.

زموږ د ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم مخالفینو هم همداسې وکړل. ورته د الله رسول کومه خبره چې کوله، هغه یې نه یادوله، بلکې کوښښ یې کاوه، چې د خپلې سردارۍ د ساتلو په موخه خبرې معکوسې تعبیر
کړي، چې خلک ترې وانه وړي او زور یې ختم نه شي.

څو ځل یې په اعلان شوي ډول رسول علیه السلام ته وفد ورواستوه، چې ته څه غواړې؟
که مال غواړې، نو له ټولو قومونو به درته مال راټول کړو، تر ټولو مالدار به ته شې .که مشري

غواړي، موږ ټول به په يو اتفاق تا د خپلې ساحې مشر وټاکو .که کومه ښځه دې خوښه وي، راويې ښيه، ګنې موږ به وګرځو او د قريشو تر ټولو حسينه او مالداره ښځه به درته وکړو .

دوی ورسره په اصل خبره دلايل نه ويل، بلکې کوښښ يې کاوه، چې خپلو ناپوهانو ته وښيي، چې ګوندې دا سړی يوازې او يوازې د دوی د خدايانو توهين او کوي او دې کې يې څه چل دی .درځئ دا خبرې وريادې کړئ، که اصل مقصد يې ښکاره شي او له ستونزې خلاص شو.

رښتيا داسې نه و چې ګوندې دوی د رسول عليه السلام په مقصد نه پوهېدل، ځکه چې د دوی دا حقايق پټول هم له هوښيارۍ او زيرکتيا وو ، ګنې نا پوهه او بې عقله انسان داسې تدابير نه شي جوړولی .دوی ښه پوهېدل چې پيغمبر څه وايي، مګر د هغه وينا ورته ډېره درنه تمامېده، ځکه چې کبرجن وو ، زورواکان وو ، متکبر وو .دا چې الله جل جلاله د حق د اظهار فيصله کړې وي او د دوی هر چل او مکر کار نه ورکوي، دا نو د الله جل جلاله د خاص نصرت مظهر دی.

نن هم زورواکان او جابر خلک همداسې کوي او د خپلو متکبرو اسلافو په قدم ځي. کوښښ کوي، چې موضوع بدله وښيي او داسې يې معرفي کړي، چې ګوندې د مال، منصب، جاه وجلال او پردې مشن خبره ده .کوښښ يې وکړ، چې د هر طاغوت دربار ته حاضري ورکړي او د دوی په ګمان ځان له غمه خلاص کړي ! !

دا د عقيدې او فکر جهاد دی او تر هغې به روان وي، چې عقيده او فکر يې ايجابوي.د چا د مشن او استخباراتي هدف خبره نه ده، ګني څه يې ګڼئ، چې ستاسې له ټولو فشارونو او درباري حاضريو سره سره په پارلمان درننوتل؟ څه يې ګڼئ چې د کابل زړه يې درته سور اور کړ؟ څه يې ګڼئ چې عزم مو پرلپسې ولسوالۍ درنه اخلي؟ څه يې ګڼئ چې تر بل هر وخته او تر بلې هرې ورځې يې ستاسې خوب تروړلی؟

دا د دربارونو خبرې نه دي، د جګړې عوامل لرې کړئ!

# د الله په نزد مجاهد له نورو خلکو نه غوره ده

قاري محب الله صافي

قال الله تعالى )فَضَّلَ اللهُ المُجٰ◌هدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى القٰ◌عدِيْنَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللهُ الحُسْنٰ◌ى وَفَضَّلَ اللهُ المُجٰ◌هدِيْنَ عَلَى القٰ◌عدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا دَرَجٰ◌ت مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا )(1.(

الله تعالی په سر او مال سره جهاد کوونکو ته په کور کې د ناستو خلکو په نسبت ډېره غټه درجه ورکړې ده. که څه هم له ټولو سره یې د جنت وعده کړې ده خو الله تعالی مجاهدینو ته په ناستو خلکو باندې د ډېر لوی اجر په ذریعه فضیلت ورکړی دی. هغوی لپاره د الله له لوری نه لویې لویې مرتبې دي، بخښنه او رحمت دی او الله تعالی بخښونکې او مهربان دی.

)وروى البخاري وَمُسْلِمٌ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ؟ فَقَالَ: «رَجُلٌ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللهِ بِمَالِهِ وَنَفْسِهِ» ، قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: «مُؤْمِنٌ فِي شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ يَعْبُدُ اللهَ رَبَّهُ، وَيَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهِ» ) (2.(

بخاري او مسلم له ابو سعيد خدري رضی الله عنه نه روایت کوي چې یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغې او پوښتنه یې وکړه چې کوم خلک غوره دي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه مؤمن چې د الله په لاره کې پخپل ځان او مال سره جهاد کوي. هغه وویل بیا څوک؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه سړې چې دغرونو په یوه ناوه (دره) کې ځان ته او سیږي او د خپل رب عبادت کوي او خلکو ته شر نه رسوي.

امام نووي رحمه الله وايي چې په حدیث کې خاصتاً په درې کې اعتزال مراد ندې بلکې مطلق ګوښه والې مراد دې اګر پخپل کور کې وي. او په حدیث کې یې د درې یادونه ځکه وکړه چې دا غالباً له خلکو نه خالي وي(3.(

رسول الله صلی الله علیه وسلم په صراحت سره ویلي دي چې جهاد له گوشه نیشۍ نه غوره دی او په دی باندې د الله تعالی دا قول دلالت کوي:

)لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ) (4.(

بې له عذره ناست مومنان له هغو مجاهدینو سره برابر نه دي چه د الله په لیار کې پخپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوي.

الله تعالی ته جهاد له ټولو نه محبوب عمل دی

)روی الترمذي والبيهقي والحاكم عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَعَدْنَا نَفَرٌ مِّنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: لَوْ نَعْلَمُ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ عَمِلْنَاهُ. فأنزل الله عزوجل: سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللهِ أَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ (5 ) فقرأها علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ( 6(

ترمذي، بیهقي او حاکم له عبد الله بن سلام رضی الله عنه نه روایت کوي چې هغه وویل: مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم څو اصحاب په یو ځای کې ناست وو. مونږ وویل: که چیرې مونږ پوه شو چې کوم یو عمل الله تعالی ته محبوب دی نو همغه به وکړو، نو الله تعالی دغه آیت شریف نارل کړ.

ترجمه: د اسمانونو او زمکې ټول ځیزونه دیو الله پاکي بیان کړې ده او هغه په هرڅه برلاسئ او د حکمت څښتن دی. ای مومنانو ! هغه څه ولې وایئ چې نه یې کوئ، د الله په نزد ډیره لویه گناه ده چې هغه څه ووایئ چې کوئ یې نه ځکه الله تعالی یوازې هغه خلک خوښوي چې په لاره کې یې د ترلې صف په شکل جنگ کوي لکه چې دوی کلک کړای شوی دیوال وي.

له نازلیدو ورسته رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه آیت مونږ ته ولوست.

وَفِيْ رِوَايَةٍ أُخْرىٰ لِلْبَيْهَقِيِّ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ نَاسًا مِّنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا: لَوْ أَرْسَلْنَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُوْلًا يَسْأَلُهُ عَنْ أَحَبِّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللهِ! فَلَمْ يَذْهَبْ إِلَيْهِ أَحَدٌ مِّنَّا، وَهِبْنَا أَنْ نَسْأَلَهُ عَنْ ذٰلِكَ. فَدَعَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُولٰئِكَ النَّفَرَ، رَجُلًا رَجُلًا، حَتّٰى جَمَعَهُمْ، وَنَزَلَتْ فِيْهِمْ هٰذِهِ السُّوْرَةُ (سبح الله... ) قَالَ إِبْنُ سَلَامٍ فَقَرَأَهَا عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّهَا (7)

او بیهقي له عبد الله بن سلام نه یو بل روایت داسې نقل کړی دی چې: د رسول الله صلی الله علیه وسلم له اصحابو نه څوتنو وویل: که مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خپل یو استازی لیږلی وای چې له هغه صلی الله علیه وسلم نه د هغو اعمالو پوښتنه کړې وای چې د الله ډیر خوښ دي له مونږ نه هیڅوک د هغه صلی الله علیه وسلم خواته ورنغې، او مونږ د اغوښتل چې په دی باره کې له هغه صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړو.

بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه کسان یو یو راوغوښتل تر دې چې ټول یې سره راجمع کړل او د هغوی په باره کې (سبح الله... ) سوره صف نازل شو.

ابن سلام وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا تول بيامونږ ته ولوست.

له جهاد سره هيڅ شي نشي برابريدلې

)روى مسلم عن أبي هريرة رضى الله عنه قال: يارسول الله ! مَا يَعْدِلُ الجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ؟ قال: «لَا تَسْتَطِيعُونَهُ» ، قَالَ: فَأَعَادُوا عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ، أَوْ ثَلَاثًا كُلُّ ذَلِكَ يَقُولُ: «لَا تَسْتَطِيعُونَهُ «، وَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ: «مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ الْقَانِتِ بِآيَاتِ اللهِ، لَا يَفْتُرُ مِنْ صِيَامٍ، وَلَا صَلَاةٍ، حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللهِ » (8(

له ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: اى دالله رسوله ! له في سبيل الله جهاد سره څه شي برابريدلې شي؟ هغه صلى الله عليه و سلم وفرمايل: تاسې د هغه توان نلرئ.

دوه درې كرته مو دا پوښتنه تكرار كړه، خوهريوځل يې همدا ويل چې طاقت يې نه لرئ؟ بيا يې وفرمايل: دالله په لاره كې دمجاهد مثال دهغه روژه دار، اولمونځ گذار په شان دى چې مسلسل په قيام كې ولاړ دالله جل جلاله دآيتونو تلاوت كوي ترهغه پورې نه له روژو ستړى كيږي نه له لمونځو، چې دالله دلارې مجاهد بېرته راشي.

)قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ يَعْدِلُ الْجِهَادَ؟ قَالَ: «لَا أَجِدُهُ» قَالَ: «هَلْ تَسْتَطِيعُ إِذَا خَرَجَ الْمُجَاهِدُ أَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَكَ فَتَقُومَ وَلَا تَفْتُرَ، وَتَصُومَ وَلَا تُفْطِرَ؟» قَالَ الرَّجُلُ: وَمَنْ يَسْتَطِيعُ ذَلِكَ؟ .(9) (

بخاري له ابوهريره رضى الله عنه څخه روايت كړيدى چې يو سړي وويل: اى دالله رسوله ! ماته داسې يو كار وښايه چې له جهاد سره برابروي. رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زه داسې كارنه وينم چې له جهاد سره برابروي .بيايې وفرمايل: اياته ددې وس لرې چې كله مجاهد جهادته ولاړشي له همغه وخت نه خپل مسجد ته ننوځې اومسلسل په لمونځ ودريږې اوستړي نشې. او روژې ونيسې مګر ماتې يې نكړې؟ سړي ورته وويل يارسول الله ! ددى طاقت او توان څوك لرلى شي.

داصحابو پشان خلكو ددې طاقت او توان نه درلود چې داسې يو عمل ترسره كړي چې له جهاد سره برابر ثواب ولري. ددې سره سره چې اصحابان دلوې همت اود پاكو نفسونو خاوندان وو، له دينې شهامت نه ډک وو، له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يې دصحبت په وجه اجرونه دوچند وو په هرې نيكئ كې به يې مسابقه كوله خاصتاً په جهادكې يې اوچتو مرتبو ته ځانونه رسولي وو، كه هغوى له جهاد سره برابر كوم عمل ندى موندلى نو دمونږ غوندې خلكو زړونه به څنګه په لږ غوندې عملونو سره سكون ترلاسه كړي اوڅنګه به له زيار باستلو پرته زمونږ ستركې يخې شي سره له دې چې زمونږ په عملونو كې ريا زياته او اخلاص پكې كم دې. اوپه زړونو كې موډول ډول سوچونه اود سيسې پرتې دي؟

اى الله ! زمونږ زړونه له دغه غفلت نه بيدار كړه. اودجهاد توفيق راپه نصيب كړه. ځكه دهر خيرغوښتنه يواځې له تاڅخه كيږي. اودګناهونو دپريښودلو اونيكيو دكولو توفيق وركوونكې يواځې ته يې.

)وَخَرَّجَ إِبْنُ عَسَاكِرٍ عَنْ أَبِيْ الْغَادِيَةِ الْمُزَنِيِّ قَالَ: سَمِعْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَهُوَ يَخْطُبُ عَلَى الْمِنْبَرِ وَيَقُولُ: يَا أَهْلَ الْمَدِيْنَةِ ! أَلَا تَأْخُذُوْنَ

بِحَظِّكُمْ وَنَصِيْبِكُمْ مِنَ الجِهَادِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ؟ أَلَا تَرَوْنَ إِخْوَانَكُمْ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، وَإِخْوَانَكُمْ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ، وَإِخْوَانَكُمْ مِنْ أَهْلِ العِرَاقِ، وَوَاللهِ لَيَوْمٌ يَعْمَلُهُ أَحَدُكُمْ وَهُوَ يُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ يَوْمٍ يَعْمَلُهُ فِيْ بَيْتِهِ صَائِمًا لَا يُفْطِرُ، وَقَائِمًا لَا يَفْتُرُ( .......

ابن عساکر له ابوغادیه مزني څخه روایت کوي هغه وایي چې: له عثمان بن عفان رضی الله عنه څخه مې واورېدل، هغه په منبر باندې په خطبه کې ویل: ای دمدینې خلکو ! ایاجهاد في سبیل الله کې خپل حصه اوبرخه نه آخلئ ایاتاسې دشام او دعراق اومصراوسیدونکو ورونوته نه ګورئ؟

په الله قسم ! له تاسونه چې څوک دالله په لاره کې یوه ورځ جهادکوي له هغو زرو ورځونه بهتردی چې پخپل کور کې پرله پسې روژې نیسي اونه یې ماتوي اومسلسل په لمانځه ولاړ وي اونه ستړی کیږي.

——

اخځلیکونه:

– 1النساء: ۹۵-۹۲.

– 2اخرجه البخاری برقم: ۲۷۸۲ ومسلم برقم ۱۸۸۸

– 3شرح النوي صحیح مسلم: ۱۳/ ۳۴

– 4النساء: ۹۵.

– 5الصف: ۴

– 6اخرجه الترمذي: ۵/ ۸۵ والبیهقي فی السنن الکبری ۹/ ۱۵۹-۱۲۰ والحاکم: ۲/ ۲۹ والحدیث صحیح.

– 7البهقي فی السن الکبری: ۹/ ۵۹ والحدیث صحیح.

– 8اخرجه مسلم برقم: ۱۸۷۸.

– 9اخرجه البخاری برقم: ۲۷۸۵.

## دتراویحو په مینځ کې خبرې یا خوراک او څښاک؟؟

الاستفتاء: رقم ۲۱۱۵ زموږ حافظ صاحب دهرو څلورو رکعتونوتراویحو په مینځ کې یاددورکعتونو په مینځ کې اوبه څښې نو په دې سره یې تراویحو ته تاوان رسیږي اوکنه ؟ همدارازځینې خلک دتراویحو په دغه ناسته کې یوله بل سره خبرې کوي تراویح خو به یې نه خرابیږي ؟

الجواب حامدا ومصلیا وبعد: که دعذر له امله اوبه څښې پروا نه لري اولمانځه ته هم تاوان نه رسیږي ، اوکه عذر نه وي نوبیاپه دې هکله دعلماؤدوې رایې دي:

۱ =داچې دغه ډول عمل یې مبطل داجردی. یعني دتراویحو ثواب یې ختم شو

۲ =اودوهم داچې دغه عمل یې منقص دثواب دی مبطل نه دی.

اوهمدغه حکم دخبرو هم دی.

په هرصورت احتیاط داده چې که سخت ضرورت نه وي له دې عمل دې ډډه وکړي.

وفي الدرالمختار ۲۱۱۲ شامله وطبع اخری ۵۰۳۱۱) ولو تکلم بین السنة والفرض لا یسقطها ولکن ینقص ثوابها ) وقیل تسقط (وکذا کل عمل ینافي التحریمة علی الاصح ) قنیة.

وفي الخلاصة : لو اشتغل ببیع أو شراء أو أکل أعادها وبلقمة أو شربة لا تبطل، ولو جئ بطعام، إن خاف ذهاب حلاوته أو بعضها تناوله ثم سنن، إلا إذا خاف فوت الوقت، ولو أخرها لآخر الوقت لا تکون سنة، وقیل تکون.

وفي الشامي ۱۵۸\۵ ) قوله وفي الخلاصة إلخ ) الظاهر أنه استدراک علی ما صححه في المتن تبعا للقنیة لأن جزم الخلاصة بقوله أعادها یفید أنها تسقط بقرینة قوله بعده لا تبطل: أي لا یبطل کونها سنة فإنه یفید أن الإعادة لبطلان کونه سنة وإلا لم تصح المقابلة تأمل.

)قوله ولو جيء بطعام إلخ ) أفاد أن العمل المنافي إنما ینقص ثوابها أو یسقطها لو کان بلا عذر ،

# رمضان فرصتي براي دگرگوني

عبدالخالق احسان

## بر دروازه هاي رمضان :

رمضان با روشنايي، طراوت، خوبي ها و پاكيزگي هايش در شُرف آمدن است، مي آيد تا انسان ها را بر محور قوت تصميم گيري و دگرگوني در برابر سختي ها و پيروزي در مقابل مشكلات زندگي تربيه كند.

پيامبر صلي الله عليه وسلم قدوم و تشريف آوري رمضان را به اصحابش تبريك گفته و آنان را بشارت مي داد، و براي شان مي فرمود: «رمضان ماه مبارك نزد شما آمد كه خداوند روزه آن را فرض گردانيده، درين ماه دروازه هاي بهشت باز مي شود، دروازه هاي دوزخ بسته شده و شيطان ها به زنجيز كشيده مي شوند. درين ماه شبي است كه از هزار ماه برتر است، كسي كه از بركات اين ماه محروم شود درحقيقت از همه فضايل محروم مانده است». احمد.

## رمضان وتغيير :

تغيير نفوس افراد، امت ها و ملت ها، نياز مبرم عصر حاضر است، تغيير سنتي از سنت هاي الله متعال در جهان آفرينش به شمار مي رود. خداوند جل جلاله مي فرمايد: {إِنَّ اللّهَ لاَ يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُواْ مَا بِأَنْفُسِهِمْ} رعد.(11) خداوند حال و وضع هيچ قوم و ملتي را تغيير نمي دهد (و ايشان را از بدبختي به خوشبختي، از ناداني به دانائي، از ذلت به عزّت، از نوكري به سروري، و.. و بالعكس نمي كشاند) مگر اين كه آنان احوال خود را تغيير دهند.

تغيير از وضعيت موجود به وضعيت مطلوب به تمنا و آرزو حاصل نمي شود؛ بلكه عمل پايدار، نيت خالصانه و روش استوار را مي طلبد. ماه رمضان فرصت حقيقي تغيير بوده و برنامه عملي براي اصلاح نفس ها و قلب ها و آغاز حقيقي در بناي امت اسلامي محسوب مي گردد.

رمضان ماه ايجاد تغيير و انتقال روحي و جسمي است كه اوضاع ما را اصلاح كرده و از درون تغيير مان مي دهد و تغيير مثبت اراده قوي، عزم راستين و تلاش خستگي نا پذير مي خواهد.

خداوند مي فرمايد: { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ} بقره (183) اي كساني كه ايمان آوردهايد ! بر شما روزه فرض شده است ، همان گونه كه بر كساني كه پيش از شما بودهاند فرض بوده است ، تا باشد كه پرهيزگار شويد. اگر ماه تغيير را غنيمت ندانيم و خويشتن را دگرگون نكنيم، عمر ما ضايع مي گردد و نمي توانيم عليه تزوير و حقه بازي و بيهوده گي قيام كنيم پيامبر صلي الله عليه وسلم مي فرمايد: « كسي كه سخن دروغ و عمل فريبكارانه را ترك نكند ، خداوند نيازي به ترك خورد و نوش او ندارد». بخاري و نيز مي فرمايند » :روزه حقيقي تنها ترك خورد و نوش نيست، بلكه روزه حقيقي ترك بيهوده ها و اموز لغو مي باشد ؛ اگر كسي ترا دشنام داد و همراه تو بي عقلي نمود ، برايش بگو: من روزه دارم» حاكم.

## مهمترين دستاوردهاي تغيير در رمضان:

تسليمي در برابر حكم الله متعال، اجرا و تطبيق اوامر شريعت او تا شخص در تمام حالات زندگي اش تقوي الهي را رعايت نمايد ، رمضان با برنامه هاي خدايي ويژه اش، ضامن تغيير طبيعي و مطلوب زندگي فردي و خانوادگي باشد .

يك ديگر از دستاور هاي تغيير در رمضان، دقت و التزام و تنظيم درست اوقات مي باشد ؛ چنانچه همه مسلمانان را ميبيني كه بر سفره افطاري نشسته منتظر اذان اند ، از خورد و نوش و همبستري خود داري مي كنند ، و در حالت اداي نماز هاي فرض و نماز تراويح صفوف مرصوصي را تشكيل داده اند.

## زيباترين لحظه يي تغيير در رمضان :

اين لحظه مهم و حساس، لحظه افطار است كه نبايد يك دقيقه تأخير شود ؛ چنانچه رسول خدا صلي الله عليه وسلم فرمودند: « امت تا وقتي سعادتمند اند كه به افطار عجله نموده و سحري را تأخير نمايند» اين لحظه ي دلنشين روابط صميمي را بين اقشار امت و خانواده ها نهادينه مي سازد.

## كامل ترين مورد تغيير در رمضان :

اين كه انقلاب هاي ملي ونتايج آن را كه نعمت الهي اند ، پاس داريم؛ چون تغيير سريعي كه رونما گرديد ، نشانه مدد الهي است و نيز اين را ثابت مي سازد كه اين سنت كوني در توان انسان مي باشد.

حالا در رمضان اين فرصت طلايي به ميان آمده تا ملت هاي عربي انقلاب هاي شان را حفظ كرده و آزادي شان را نصيب شوند. سالم ماندن تغييري كه ملت ها به آن تمسك جسته، انقلاب هاي شان را هميشه حفظ مي كنند و در مقابل مشكلات ثابت قدم اند ، اين نتيجه كمك الله متعال است كه غرب و شرق و دانشمندان سياسي و فكري مسلمان و غير مسلمان را متحير نمود.

## :

شكستاندن پرده خوف و ترس است تا ثابت شود كه قوت حقيقي در گرو پناه جستن به خداوند و مدد خواستن از اوست .در مقابل اين روحيه قوي، طاغوت نمي تواند بار ديگر ملت هاي ما را برده خويش سازد و نمي تواند انواع ستم و طغيان

بر ما بقبولاند ؛ چون خداوند مي فرمايد: { وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ} قصص (6) و ايشان را در سرزمين (مصر) مستقر گردانيم و سلطه و حكومتشان دهيم ، و بر دست مستضعفان ، به فرعون و هامان و لشكريانشان چيزي را بنمايانيم كه از آن در هراس بودند .

## رمضان ماه تغيير واصلاح امت:

روزه از بزرگترين شعائر اسلامي است كه همه امت مسلمه با تمام دولت ها ، مذاهب، زبان ها وعرف هاي شان به آن سهيم اند طوري كه تمام امت در جهان اسلام اتفاق نظر دارند كه روزه ماه رمضان فرض بوده و از اركان اسلام مي باشد. در رمضان تشويق و ترغيب زيادي براي دادن زكات وجود دارد كه دادن زكات سهم فعالي در مداواي مشكلات بيكاري و ارتكاب جرايم دارد ؛ چنانچه كه فقر جهاني را ريشه كن مي سازد. آمار نشان مي دهد كه بيشتر از يک ميليارد و صد ميليون فقير و تنگدست در جهان بشري وجود دارد. در رمضان صدقه فطر است كه همه مسلمانان پرداخت مي كنند تا تكافل اجتماعي حقيقي تحقق يابد. در بيشتر از 130 آيه قرآني و صدها احاديث نبوي به انفاق و مصرف كردن مال براي مسلمان و غير مسلمان ترغيب شده است.

رمضان امت اسلامي را به استقلال فرا مي خواند تا در مقابل هجوم جهاني شدن كه انسان ها را به دوري از اساسات اخلاقي مي كشاند ، مقاومت كرده و امت ويژه ي باشند ؛ چون امت اسلامي صبغه و نماي بخصوصي دارد. خداوند مي فرمايد: {صِبْغَةَ اللهِ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللهِ صِبْغَةً وَنَحْنُ لَهُ عَابِدونَ} بقره (138) (خداوند ما را با آئين توحيدي و ايمان راستين زينت داده است و ) اين رنگ و زينت خدا است و چه كسي از خدا (ميتواند (زيباتر بيارايد و بپيرايد ؟ و ما تنها او را ميپرستيم.

در اخير برخي پيروزي هاي امت اسلامي را در درازناي تاريخ در ماه رمضان ياد آور مي شويم:

- غزوه بدر رمضان سال دوم هجري
- فتح مكه رمضان سال هشتم هجري
- فتح اندلس به رهبري طارق بن زياد در 28 رمضان 92 هجري قمري
- واقعه عين جالوت در 15 رمضان 658 هجري كه مغول ها شكست خوردند.
- پيروزي ما بر صهيونست هاي غاصب در دهم رمضان 1383 هجري قمري

اين همه پيروزي ها مطابق وعده پروردگار جهانيان است كه مي فرمايد: { وَكَانَ حَقّاً عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ} روم (47) و همواره ياري مؤمنان بر ما واجب بوده است.

ما اگر در رمضان خويشتن را تغيير دهيم به نصرت خداوند نزديكتريم.{ وَيَقُولُونَ مَتَى هُوَ قُلْ عَسَى أَن يَكُونَ قَرِيباً} اسراء (51) و مي گويند : چه زماني اين (معاد ) خواهد بود ؟ بگو : شايد كه نزديک باشد .

# د روژې لومړۍ لسيزه

## د رحمتونو د وربښت ورځې

حبيب الله زيار

د روژې مبارکه مياشت په درې برخو ويشل شوې ده، چې لومړيو لسو ورځو ته يې د رحمتونو لسيزه وايي.

د روژې د لومړيو لسو ورځو د رحمتونو ښايست په همدې کې دی چې پدې کې د برکتونو او نيکمرغيو لپاسه نور برکتونه وي.

مسلمانان پدې پوه دي چې روژه يو روحاني فرصت دی، مګر رحمتونه په حقيقت کې د مسلمانانو لپاره څه معنی لري؟

د الله تعالی يو نوم الرحمان دی، يعنې ډېر زيات رحم کونکی، او مسلمانان چې هر کار کوي نو د الله دغه نوم پکې يادوي. نو دا به کومه د حيرانتيا خبره نه وي چې رحمتونه په هغه مياشت کې ډېر راڅرګند شي کومې ته چې الله خپله مياشت ويلې ده.

په يو قدسي حديث کې الله تعالی فرمايي:

اې د آدم زويه، تر هغه چې ته له ما غوښتنه کوې او په ما تکيه کوې، زه تا ته بخښنه کوم او هغه څه چې تا کړي زه يې بد نه ګڼم. ای د آدم زويه، که ستا ګناهونه د اسمان تر وريځو ورسيږي، او بيا هم ته له ما بخښنه وغواړې، نو زه به درته بخښنه وکړم. ای د آدم زويه، که ته پرته لدې چې له ما سره شريک ونيسې ما ته له دومره ګناه سره راشې چې دا ټوله ځمکه به پرې ډکه شي نو زه به درته بيا هم بخښنه وکړم. (الباني دغه حديث د منلو وړ(صحيح ) ګرځولې)

ډېر مومنان به پدې اړه ډېر وارخطا وي چې روژې ته پداسې حال کې ننوځي چې ډېر ګناهونه په پوهه او غلطۍ ورنه شوي. خو سره لدې هم الله تعالی ورته د بخښنې وعده ورکوي. او دا هم ورته راپه يادوي چې له شرک څخه ځان وساتي.

په پورته ذکر شوي حدیث کې الله تعالې مونږ ته دا رایادوي چې هغه جلاجلاله الرحمان او الرحیم یعنې ډیر زیات مهربان او رحم کونکي دي. د الله په رحمت کې راتاویدل او د جنت غوښتنه خو هغه څه دي چې هر مسلمان یې له الله تعالی څخه غواړي او د هغه جلاجلاله له عذاب څخه ویره کوي. الله تعالی فرمایي:

قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ (الزمر ۵۳)

ووایه، ای زما هغو بنده ګانو چې پر خپلو نفسونو مو تیرې کړې، د الله تعالی له رحمت څخه مه نا امیده کیږئ. یقینا الله ټول ګناهونه بخښي. او هغه په ریښتیني ډول بخښونکې او مهربان دی.

دعا او ذکر د الله تعالی د رحمت کیلیګانې دي

د مسلمانانو لپاره تر ټولو غوره لاره چې د الله عبادت پکې وکړي داده چې په لومړیو لسوورځو کې پداسې حال کې چې د جنت دروازې خلاصې او د دوزخ دروازې بندې دي او د الله د بنده ګانو لپاره د الله نه د رحمت د غوښتو ښه وخت او موقع ده، دوې دې الله تعالی ته د رحمت دعاګانې او اذکار کوي ، او الله تعالی هیڅکله هم له خپلې وعدې نه اوړي. یوه ډیره ښه دعا دا هم ده:

وَقُل رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ (المومنون ۱۱۸)

او ووایه ای زما ربه ! بخښنه وکړه او رحم وکړه، بیشکه ته غوره رحم کونکې یې. دغه راز الله تعالی فرمایي:

فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ (البقره ۱۵۲)

تاسو ما یاد ساتئ. زه به تاسو یاد ساتم او زما شکر پرځای کړئ او ناشکري مه کوئ.

دا یقینا یوه غوره یادونه ده چې تل د الله تعالی څخه د مهربانۍ او رحمت دعا وغواړو ، فرق نکوي که زمونږ غوښتنه هر څومره ورو او یا هم کمزورې وي او یا که مسلمانان په هر څومره مشکلاتو کې اخته وي. بنده ګان باید هیڅکله هم د الله تعالی له رحمت څخه نهیلي نه شي.

روژه پخپله یو رحمت دی

د اسلام د یو بنا په ډول د روژې نیول خپله یو رحمت دی. په روژه کې مسلمانان د ښه صحت لرونکې وي او له معنوي اړخه ډیر قوي کیږي. مسلمانان په روژه کې په ډیرو کمو خوړو هم شکر وباسي او د هغه چا په حال خبریږي چې له دوې لږلري او یا هم دومره بیوزله وي چې د روژه ماتي لپاره ورته د اړتیا وړ خواړه هم نه پیدا کیږي.

روژه د مسلمانانو لپاره یو چانس دي چې په هغه څه شکر وباسي چې الله ورکړي، او د هغه چا له حاله خبر شي چې له دوې یې حال خراب او له ډیرو مشکلاتو سره مخ وي.

مګر الله تعالی لدی هم د زیات شي وعده کړیده، هغه فرمایي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ (البقره ۱۸۳)
اې مومنانو روژه پرتاسې فرض شوې لکه څرنګه چې په تیرو امتونو فرض شوې وه، ښایې چې تاسو پرهیزګاره شی.

یقینا روژه د مسلمانانو لپاره د الله یو تر ټولو غوره ډالۍ ده چې خپلو بنده ګانو ته یې ورکړې او د روژې دغه ټول برکات او رحمتونه به مونږ هلته لاسته راوړي وي چې په صحیح توګه او لکه څرنګه چې لازمه ده د الله تعالی بنده ګي وکړو.

روژه ونیسه او د رحمتونو په دې دور کې له الله وغواړه

د روژې لمړئ لس ورځې لکه څرنګه چې مخکې یادونه وشوه د رحمتونو د وربښت ورځې دي او الله تعالی خپل بې انتها رحمتونه په خپلو ټولو هغو بنده ګانو وروي چې ښه عملونه کوي او د نیکو عملونو بدله په څو برابره زیاته ورکوي او حتی الله تعالی پدې ورځو کې هغه چاته چې غافله او بد عمله دي او په صدق توبه وباسي بخښنه کوي. الله تعالی پدی میاشت کې د مسلمانانو زړونه پاکوي او هغوې ته په صحیح او ښه ډول د الله تعالی د عبادت کولو لار ورښايي.

الله تعالی فرمايي:

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ (الذاريات ۵۲)

او ما (الله) نه دي پیدا کړي پیریان او انسانان مګر د عبادت لپاره.

روژه خو یقینا ډیر فضیلت لري او یو بهتري یې په دې کې هم ده چې الله وایې روژه زما ده. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: الله تعالی فرمايي: د ادم د زوی هر عمل د خپل ځان لپاره دي غیرله روژې څخه، روژه زما لپاره ده او زه به یې بدله (روژه نیونکي) ته ورکوم. په حقیقت کې د روژه دار د خولې بوې الله تعالی ته د مښکو له بوې څخه غوره دي. بخاري.

پدې ډول بې اندازې اجرونه او ثوابونه به د روژې په جریان کې ټولو هغو خلکو ته ورکول کیږي چې یوازې د الله تعالی عبادت وکړي او په اخلاص توبه وباسي.

# د سید التابعین

## حسن بصري (رح) ژوند ته لنډه کتنه

حمدالله دانشمند

د حسن بصري (رح) د پلار نوم ابوالحسن یسار د زید بن ثابت (رض) مریی وو، او د مور نوم یې (خیرة) د امّ سلمې (ام المؤمنین رضي الله عنها) مینځه وه چې د ده مبارک پلار (ابوالحسن یسار) ور سره له اعتاق وروسته د عمر (رضي الله عنه) د خلافت په دور کې واده وکړ.

حسن بصري (رح) په مدینه منوره کې په کال (۲۱ ه- سپوږمیز) کې، د یاد خلیفه (رض) د خلافت په وروستو کې وزیږېد، د ژوند لومړی پړاو یې په «وادي القری» نومي ځای کې بشپړ کړ.

حسن بصري (رح) د علم، زهد، تقوی، شجاعت، او فصاحت تر څنګ د هر ښه صفت او لوړو کمالاتو ویاړلاره، چې نوموتو او مخکښو علماؤ یې په اړه ښېلا ښېلې ستاینې کړې، د ده مبارک و دې ستر مقام ته د رسېدو (۲) لامله په ګوته شوې:

لومړی: ده د ام المؤمنین "ام سلمې" (رض) په مبارکو شیدو وده کړې

دویم: امیر المؤمنین "عمر" فاروق (رض) و ده ته دا دعا کړې «اللهم فقهه فی الدین، و حببه الی الناس، » ژباړه: اې الله (ج) ته و ده (حسن بصری [رح]) ته په دین کې پوهه ور په برخه کړه، او خلکو ته یې ور دوست کړه، له "ابوعمرو الشباب" (رح) نه د ده په سند نقل شوی، وایي: «ام سلمې (رض) به د ده مور )خیره) د یو کار لپار واستوله ده به ژړل، هغې مبارکې به په خپل تي ارامـاوه، کله به یې "صحابه کرمو" (رض) ته ور ویست هغوی (رض) به ورته د برکت دعا وکړه، یوه ورځ یې و عمر (رض) ته ور ویست، هغه مبارک ورته د "دیني پوهې "... دعا وکړه،. «

نوموړي د "ابن الجزري" په قول قرائت په "حطان بن عبدالله الرقاشي"، "ابوالعاليه" او "زيد بن ثابت" (رض) تر سره کړ. د نوموړي روايت له عمران بن حصين، مغيرة بن شعبة، عبد الرحمن ابن سمرة، نعمان بن بشير، ابن عباس، عمرو بن تغلب، معقل بن يسار، انس بن مالک اونورو ډېرو صحابه وونه ثابت دی، له ده نه هم ډېرو روايت کړی.

حسن بصري (رح) نوموتی خطيب، د ډير نرم زړه څښتن وو،

نبي عليه السلام مبارک به د جمعي د خطبې پر مهال د ونې يو وچ ډډ (لرګي) ته تکيه وهله، کله چې خلک ډېرشو نو عليه السلام مبارک و فرمايل: «څما لپاره يو منبر تيار کړی، چې کله هغه مبارک منبر ته د خطبې لپاره بالا شو ياد لرګی و عليه السلام مبارک ته په ژړا شوانس (رض) وايې: څه په مسجد کې وم ژړايې ما په مسجد کې اورېده، تر هغو يې ژړل چې نبې عليه السلام ور ښکته شو، او په غېږ کې يې ونيو بيا قرار شو. «

حسن بصري (رح) چې به دا حديث بيانا وه د ه مبارک به وژړل بيا به يې وويل »: اې د الله (ج) بندګانو! وچ لرګی نبي عليه السلام ته ژاړي ورنه د ويصال او ملاقات غوښتنه کوي، نو تاسو خو هرو مرو بايد نوموړی مقام خپل کړئ. «

نور بيا...

ماخذ: خلاصه له (سير اعلام النبلا ۴/ ۵۸۵) او (معجم حفاظ القران ۱/ ۸۰(

## قريب ته صدقه ورکول افضل دی او که مجاهد ته؟

قريب ته صدقه ورکول افضل دی او که مجاهد ته؟

***پوښتنه:*** يو تن وايې زما قريبان مساکين دي آيا له قريبانو سره مرسته کول بهتر دي او که له مجاهدينو سره؟ احمدالله خادم

***الجواب:*** له مجاهدينو سره مرسته کول له تصدق [خيرات] سره سره مالي جهاد هم دی، کله چې په يوه اسلامي ملک باندي کفار يرغل وکړي نو په مسلمانانو باندي چې بدني جهاد فرض ګرزي همداسې مالي جهاد هم فرض دی،

همداراز مجاهدينو ته د مال په ورکړه سره د نړی ټولو مسلمانانو ته نفع رسيږي، ځکه څومره چې د مجاهدينو مرسته کيږي هغومره مجاهدين له مسلمانانو څخه دفاع کولی شي.

همداراز که يو تن نه خپله جهاد ته ځي او نه د مجاهدينو مالي مرسته کوي، او نه د هغوئ د کورونو ساتنه کوي داسې تن په منافقانو کې ګڼل کيږي او سخت ګنهګار دی.

فی السير الکبير ۱/۲۷ أن الصرف إلى فقراء المجاهدين أولى من الصرف إلى غيره م لان فيه معنى الصدقة والجهاد وإيصال منفعة ذلک إلى جميع المسلمين بدفع أذى المشرکين عنه مبقوته وفيه أن ترک الجهاد وترک إعانة المجاهد والخيانة للمجاهد فی أهل ه لاتجتمع إلافی نافق اه




**سيدسعيد**

دروان (۲۰۱۵ ،ز) کال د جون د میاشتي په ۴ مه نیټه د ننګرهار ولايت د اچين ولسوالۍ په پخي خوړ سیمه کي د يو ملکي هيوادوال (غلام نبي) په مازدا موټر يرغلګرو ډرون حمله کړې، په حمله کي نوموړی شهيد شوی او موټر يې ويجاړ شوی دی.

دجون په ۴ مه د نورستان ولايت دوانت وايګل ولسوالۍ بيله سيمه کي داخلي عسکرو يو قومي مشر (حاجي عبدالبصير) د طالبانو سره داړيکو درلودو په تور شهيد کړی دی.

دجون په ۴ مه د پروان ولايت د سیاه ګرد ولسوالۍ په رحيم خيل سيمه کي دداخلي عسکرو د هاوان مرمۍ دواده په مراسمو لګېدلې ده، چي له کبله يې دري ماشومان شهيدان شوي او پنځه تنه ژوبل شوي دي.

دجون په ۵ مه د خوست ولايت د عليشيرو ولسوالۍ په بتي سيمه کي د يرغلګرو ځواکونو د ډرون په بريد کي پنځه ديرش تنه ولسي هيوادوال شهيدان او يو شمېر نور ټپيان شوي دي ،د يادي شوې پيښي د څرنګوالي په اړه ويل شوي چي هغه مهال رامنځته شوه چي په سيمه کي يو قومي مشر وفات شوی ؤ ،تر دفن کيدلو وروسته يې خلک پلي اوموټرو کي خپلو کورنو ته په لاره ووچي پر دوو موټرو باندي د يرغلګرو بې پيلوټه الوتکي بريد وکړ چي له امله يې ياده شوې ولسي مرګ ژوبله رامنځته شوې ده. د خوست ولايت د کوچي قبيلو مخورو دغه پيښه په سختو ټکو وغندله او د عاملينو د محاکمې غوښتنه يې وکړه ،دوی هغه اوازې چي په پيښه کي طالبان وژل شوي په ټينګه رد کړه او زياته کړه چي په دغه حمله کي وژل شوي او ټپيان شوي ټول ملکي وګړي دي.

همدا راز د جون په ۵ مه د غزني ولايت د مرکز مربوط په نوغي کلي باندي داخلي عسکرو هاوانونه اورولي، هاوانونه په سيمه کي د رحمت الله پر کور لګېدلي، د نوموړي په کور کي د واده مراسم ووچي له همدې امله يې پراخه مرګ ژوبله رامنځته کړې ده ،د عيني شاهدانو په وينا چي دتوپخانې په ياد شوي بريد کي اووه تنه ملکي هيوادوال ( احمد د شيرمحمدزوی، ذکی الله او رفيع الله د علم الدين زامن، ميرزاخان د عبدالرحمن زوی، اميرمحمد د شيرآغا زوی، سميع

الله او اخترمحمد ) شهیدا ن شوي او دوه تنه نور ژوبل شوي دي.
د جون په ۵مه د بدخشان ولایت د جرم ولسوالۍ په فرغامنج سیمه کې عسکرو یو ملکي وګړي شهید کړی دی.
دجون په ۷مه رسنیو داسي خبرونه خپاره کړل چې د غزني ولایت دقره باغ ولسوالۍ په جرکنه، کاکا کلا او اکبر کلا سیمو کې اربکیانو د خلکو شنه فصلونه او باغونه له منځه وړي، او دوه سوه کورنۍ یې له سیمې څخه کډه کولو ته اړیستلي دي،خلګو رسنیو ته ویلي چې کوم وخت طالبان پر اربکیانو برید وکړي،اربکیان دخپلو توپکو خولې پر دوی وروګرځوي او ولسي وګړي په نښه کوي.
د جون په ۸ مه د پکتیکا ولایت د نکه ولسوالۍ په ورسکي سیمه کې داخلي عسکرو د طالبانو سره ترجګړې وروسته دیرش تنه ولسي وګړي د بندیانو په توګه له ځان سره وړي دي.
د جون په ۸مه د غزني ولایت د واغز ولسوالۍ په سعادت کلا کلي کې د ځایي عسکرو دثقیله وسلو په ډزو کې یوه ښځه شهیده او دوې نجونې زخمیاني شوي دي.
دجون په ۹مه د بادغیس ولایت د غورماچ ولسوالۍ د محمدخان کاریز په سیمه کې دداخلي عسکرو د توپخانې په برید کې یو ملکي سړی شهید شوی او یوه ښځه ټپي شوې ده.
دجون په ۱۳مه د هرات ولایت دشنډنډ ولسوالۍ په زوال سیمه کې د داخلي عسکرو په ډزو کې نهه تنه ولسي وګړي وژل شوي او پنځلس نفره ژوبل شوي دي. دهرات ولایتي شورې پخواني غړي تور محمد ظریفي ویلي چې امنیتي ځواکونو بې له څېړنې د خلګو پر کورونو هاوانونه اورولي دي ، د پیښې په غبرګون کې ولسي وګړې د شینډنډ ولسوالۍ مخ ته را غونډ شوي وو او ددغې فاجعې د عاملینو دژر ترژره محاکمې غوښتنه یې کوله .
دجون په ۱۳مه د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ په قرا سیمه کې د یرغلګرو د ډرون په برید کې درې تنه ولسي هیوادوال ( معلم عبدالقدوس اودوه تنه لاروي) شهیدان شوي دي.
د جون په ۱۴مه د کندوز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ په تاشګذر سیمه کې د ځایې عسکرو د هاوان مرمۍ پر یو کور لګیدلې، په یادشوي کو رکې څلور تنه کاریګر په کار بوخت وو چې ټول په دغه برید کې شهیدان شو ي دي.
دجون په ۱۴مه د غزنې ولایت د قره باغ ولسوالۍ په شا غولي سیمه کې د داخلي عسکرو دهاوان په ډزو کې دوې ښځې شهیداني شوې او د یوې ښځې په شمول درې کسان ژوبل شوي دي،د غزني دولایتي شورې غړی عصمت الله جامرادوال هم رسنیو ته ویلي چې ذکر شوی ولسي زیان د اردو د ډزوله امله رامنځته شوی دی.
دجون په ۱۴مه دفراه ولایت د پشترود ولسوالۍ په مربوطاتو کې دکورنیو عسکرو د هاوان په ډزو کې یوه میرمن شهیده شوې او یوه ښځه او سړی ژوبل شوي دي.
دجون په ۱۴مه دفراه ولایت د ګلستان ولسوالۍ په مربوطاتو کې دداخلي عسکرو د هاوان په ډزو کې دوې میرمنې او درې سړي ژوبل شوي دي.

د جون په ۱۴مه دزابل ولایت د مرکز (قلات) اړوند سیجان کلي کې د کورنیو عسکرود هاوان په برید کې د یوه کور دوه ځوانان شهیدان شوي او یو نفر زخمي شوی دی.

د جون په ۱۵مه د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې د کورنیو عسکرو دهاوان په برید کې دوه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي ،یو تن ژوبل شوی او ګڼ کورونه زیانمن شوي دي.

د جون په ۱۲مه دغورولایت د شینکوټ ولسوالۍ په نورک سیمه کې داخلي عسکرو وروسته له هغه چې رینجرموټر یې د مځکني ماین ښکار شودولسي خلګو لس کورونه سوځولي دي.

د جون په ۱۷مه د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ د ګاجوی په سیمه کې داخلي عسکرو پر دوی د یوې چاودني څخه وروسته ګڼ ولسي خلګ وهلي او پنځه تنه یې بندیان کړي دي.

د جون په ۱۹مه د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ په بازارکي اربکیانو یو ملکي وګړی چې دموټرسایکلونو مستریخانه یې کوله شهید کړی دی.

د جون په ۲۰ مه د کونړ ولایت د مرورې ولسوالۍ په مانوګي کلي کې د داخلي عسکرو د توپخانې په حمله کې یو ماشوم شهید شوی او درې کوچنیان ټپیان شوي دي.

د جون په ۲۳ مه د کندوز ولایت د چهاردرې ولسوالۍ د سرک بالا په خان رسول سیمه کې یرغلګرو پر یو مسجد دډرون په حمله کې اته تنه ماشومان چې د قران شریف په زده کړه بوخت وو شهیدان او ټپیان کړي دي .

د جون په ۲۷ مه د فاریاب ولایت د ګرزیوان ولسوالۍ په مردیان سیمه کې د ځایې عسکرو دهاوانونو په برید کې څلور کورنه تخریب شوي او یوه ښځه پکي ژوبله شوې ده.

دجون په ۲۸ مه د کونړ ولایت د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د اردو عسکرو له طالبانو سره تر نښتي وروسته دولسي وګړو یو ټونس ډوله موټر په نښه کړی دی، د عیني شاهدانو په وینا په دغه برید کې درې تنه ملکي هیوادوال شهیدان شوي دي.

دجون په ۲۸ مه د دایکندي ولایت د اجرستان ولسوالۍ په سید خیلو سیمه کې د کورنیو عسکرو د هاوان په ډزو کې یوه ښځه شهیده شوې او دوه نفره ټپیان شوي دي.

دجون په ۲۹مه د ارزګان ولایت د دهراود ولسوالۍ په مزارکلي کې د داخلي عسکرو دهاوان یوه مرمۍ پر یو کور لګیدلې چې له امله یې د ښځو او کوچنیانو په ګډون دولس تنه ولسي وګړي ژوبل شوي دي.

مأخذونه:[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،خبریال ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# دافغانستان اسلامي امارت

# د سیاسي فعالیتونو په اړه

## د رهبري شورا اعلامیه

ټولو ته معلومه ده چې اسلامي امارت د خپلو چارو د پر مخ بیولو لپاره ځانګړي اداري تشکیلات لري، چې هره اداره ور سپارل شوي کارونه، د اسلامي امارت له تګلارې او اصولو سره سم پر مخ وړي، او دا هم واضحه ده چې اسلامي امارت د سیاسي چارو لپاره د سیاسي دفتر په نامه تشکیل لري، چې تر اسلامي امارت پورې د اړونده ټولو داخلي او خارجي سیاسي چارو مسولیت ور سپارل شوی، له کوم وخت راهیسې چې سیاسي دفتر جوړ شوی له هغه را په دیخوا بل هېڅوک ددې صلاحیت نه لري چې دا اسلامي امارت دمشرتابه یاهم سیاسي دفتر له اجازې پرته د اسلامي امارت په استازیتوب له چا سره د سیاسي چارو په اړه لیده کاته وکړي، که داسې څه شوي وي او یا له دې وروسته کېږي، هغه یو شخصي تصرف دی، چې په هېڅ ډول د اسلامي امارت استازیتوب نشي کولی .

د اسلامي امارت رهبري شورا.

۱۴۳۶/۹/۷هـ ق

۱۳۹۴/۳/۴هـ ش- 24/6/2015م

# په روژه کې دې د ځان لپاره هدف ټاکلی؟

ژباړه: وحید الله

د ارزښتناک ژوند د لرلو لپاره په ژوند کې د هدف ټاکل او هغې ته د رسیدو لپاره هڅې کول اړین دي. هغه انسان خپل عمر د باد په خوله ورکوي چې پخپل ژوند کې د ځان لپاره موخې ونلري او د هغوی د لاسته راوړو په موخه زیار و نه باسي. دا خبره د ټولو انسانانو په اړه ریښتنې ده که هغه مسلمان وي یا کافر. مګر د مسلمان لپاره دا ډیره ارزښتناکه موضوع ده چې د خپل ژوند تر ټولو مهم هدف یې د الله(ج) د رضا حاصلول او د جنت لاسته راوړل وي.

ځکه نو ریښتنی مسلمان باید پخپل ژوند کې د ځان لپاره هدف ولري. البته د ژوند په دواړو مرحلو کې، د پوره ژوند هدف او د هرې هغه دقیقې لپاره هدف کوم چې دی یې د ځمکې پر سر تیروي.

هیڅوک لدې انکار نشي کولای چې انسان د یوه ټاکل شوي هدف لپاره پیدا شوی، د هغه هدف لپاره کوم چې الله پاک یې پدې توګه بیانوي. (ما ندي پیدا کړي جنیات او انسانان مګر دا چې زما عبادت وکړي) (سوره الذاریات ۵۵)

الله(ج) خپلو بندګانو ته هر وخت موقع او فرصت ورکوي تر څو دوی د الله پاک لوري ته ستانه شي. چې یو له هغوی نه د روژې میاشت ده تر څو مسلمانان په نومړې میاشت کې خپل نیک اعمال زیات او د ګناهونو څخه لاس واخلي، چې پدې توګه دوی ته د جنت د لاسته راوړلو زمینه برابره شي.

روژه هغه میاشت ده په کومه کې چې الله پاک د نیکو کړنو بدله دوه چنده ورکوي او همدارنګه د روژې میاشت پر شیطان باندې د غالبیدو تر ټولو ښه چانس دی نو د ځان لپاره هدف وټاکه او د هغې د لاسته راوړلو لپاره زیار وباسه .
پدې میاشت کې داسې هدف و ټاکه چې د دوزخ له اوره د وژغوري او د الله(ج) د رحمت ور دې وګرځوي. نومړي هدف ته کولای شې په لاندې توګه ځان ورسوې.

**د روژې په نیولو سره:**

په روژه کې دا د ځان لپاره هدف وټاکه چې د ټولو هغه شیانو څخه به ځان ساتې له کومو چې الله(ج) منع کړي یې. نو د خیانت، دروغو، غیبت، غصې .... نه ځان وساته د روژې لپاره دغه درې کړنې ډیرې مشهورې دي.

۱- د خوړلو، څښلو او مقاربت نه ځان ساتل.
۲- له ګناهونو څخه د سترګو، غوږنو، ژبې، لاسونو، پښو .... ساتل
۳- زړه د بلې هرې مشغولتیا نه ساتل او یوازې د الله پاک یادول.

اوس نو کوم شیان دي چې تا الله(ج) ته ورنژدې کوي او یاده شوې دریمه کړنه درته محیا کوي.

**د شپې لمونځ:**

دا د ځان لپاره هدف وګرځوه چې کم تر کمه په ۸،۲ رکعاته د تهجد لمونځ کوې. هیڅ عذر ته اجازه مه ورکوه چې تا د نوموړې کار څخه منعه کړي.

**قرانکریم:**

دا هم د ځان لپاره خپل هدف وټاکه چې کم تر کمه په روژه کې باید یوار د قرانکریم ختم وکړې. که د قرانکریم په لوستلو کې مشکل لرې نه یې شې لوستلای نو غوږ ورته ونیسه چې کولای شې دا کار د رادیو او یا نورو وسایلو له لارې وکړې.

**خپلوي پالل:**

د روژې په میاشت کې باید د خپلو خپلوانو سره راشه درشه زیاته کړې، البته د هغو خپلوانو سره چې د ژوند مصروفیتونو ته د هغوی نه لرې کړی یې. د دې چارې تر سره کولو لپاره یوه اندازه پیسې بیلې کړه شاید ته وکړای شې د ۱۰۰ روپیو په مصرف سره ځان خپلو خپلوانو ته ورنژدې کړې چې پدې توګه د الله(ج) رضا هم لاسته راوړل کیږي.

**صدقه:**

د خپلو پیسو یوه اندازه دې د صدقې لپاره بیله کړه او د الله پاک په نوم یې مصرفوه. دا دې له یاده ونه وزي چې هر نیک عمل ته په روژه کې دوچنده اجر ورکول کیږي.

حضرت محمد(ص) فرمایي: د صدقې په ور کړې سره ځان د دوزخ له اوره وساتی (تبراني)

که چرې دا د ځان لپاره ورځنی هدف نشې ټاکلی درته ستونزمن وي نو په ۱۰ ورځو کې د صدقې لپاره پیسې بیلوه او بیا یې یوه ورځ د الله(ج) په نوم ورکوه.

**ذکر:**

خپله ژبه د الله(ج) په یاد لمده وساته د ذکر په واسطه ځان الله پاک ته ورنژدې کړه کوم شی چې کول یې ډیر اسانه او اجر یې ډیر زیات دی.

**دعا:**

په هر حالت کې رینښتنی مسلمان باید د مؤمنانو نوموړې سلاح(دعا) استعمال کړي .په روژه کې ډیره دعا کوی ځکه چې په نوموړې میاشت کې مسلمان د عبادت په وجه الله(ج) ته ورنژدې وي او دعا یې قبلیږي. او دا هم له یاده مه باسه کومه دعا چې د زړه له خلاصه وشي الله پاک یې بې ځوابه نه پریږدي.

نو د روژې په میاشت کې خپلې دنیوي مشغولتیاوې کمې کړه او آخرت ته پام وکړه ترڅو ځان د دوزخ له اوره وژغورې. په یاد شویو ټکو عمل کول ډیر آسانه دي د هغه چا لپاره چې الله(ج) آسانه کړي وي.

# د روسیې او لوېدیځ روانه سړه جګړه

## او پر سیمه یې اغېزې

په ۲۰۱۴ کال کې د اوکراین له بحران سره ډېری سیاسي څېړونکو د روسیې او لوېدیځ په تېره بیا اروپا ترمنځ د دویمې سړې جګړې په اړه تبصرې وکړې او نړۍ یې د یوې نوې سړې جګړې پر خوا تللې وبلله. د اوکراین بحران لاهم نه دی ختم شوی او د روسیې -امریکا او لوېدیځ اړیکې هم نه دي عادي شوې. په همدې حالت کې د روسي ولسمشر ولادیمیرپوتین له تازه څرګندونو او بیا دغو څرګندونو ته د ناټو او امریکا له ځوابونو داسې ښکاري چې د روسیې -لویدیځ کړکیچ به نور هم ژور شي او دا نوې )دویمه) سړه جګړه به نور هم زور واخلي.

د دې ترڅنګ د روانې میاشتې (جون) پر ۲۴مه او ۲۵مه په بلجیم کې د ناټو د دفاع وزیرانو غونډه هم وشوه، چې د روسیې، اروپا او افغانستان په تړاو پکې خبرې وشوې. دا چې نړۍ د یوې بلې سړې جګړې پر خوا روانه ده، د دغې نوې سړې جګړې شالید څه دی او د روسانو او اروپا ترمنځ د اړیکو دغه کړکیچن

پړاوبه پر سیمې او نړۍ او په تېره بیا افغانستان څه اغېزې وښندي.

د قضیې شالیدپه ۱۹۱۷ کال کې په روسیه کې د کمونستانو له انقلاب سره د لوېدیځ پانګوال نظام له یوه کمونست رقیب نظام سره مخ شو او بیا له دویمې نړېوالې جګړې وروسته په رسمي توګه د شوروي او لوېدیځ ترمنځ "لومړۍ" سړه جګړه پیل شوه، چې په نړیواله کچه یې د ژوند پر ډېری برخو اغېزې وښندلې. اروپا او امریکا د شورویانو او د کمونستانو د پراخېدونکي نظریې پرخلاف په ۱۹۴۹ کال کې په اروپا کې د ناټو سازمان جوړ کړ او د دغه سازمان په پنځمه ماده کې راغلي وو» :په یوه برید، پر ټولو برید دی«!

د دې ترڅنګ د امریکا ولسمشر ټرومین د خپل دکترین له مخې په آسیا او اروپا کې د کمونیزم نظریې حصار غوښت او وروسته بیا د "آیزن‌هاور" په دوره کې امریکا د منځني ختیځ او سوېلي آسیا هېوادونو سره یوځای د سیټو او سېنټو په تړونونو کې ننوت. دغو

ټرونونو پر شوروي څه اغېزه ونه ښندله خو کله يې چې پر افغانستان يرغل وکړ، د شوروي حيثيت ته يې زيان ورساوه او د نړۍ ډېرى هېوادونه د افغان مجاهدينو تر شا ودرېدل چې له کبله يې شوروي له افغانستانه وتلو ته اړ شو.

نوې سره جګړه په ١٩٨٩ کال کې چې کله شورويان له افغانستان څخه ووتل، نو په اروپا او منځنۍ آسيا کې د خپلواکۍ غوښتونکو، په افغانستان کې د دوی د پوځي، سياسي او ډيپلوماتيکې ماتې او خپلو اقتصادي ستونزو له کبله بالآخره شوروي اتحاد منحل شو. د شوروي اتحاد په منحل کېدو سره په ختيزه اروپا او منځنۍ آسيا کې يو شمېر هېوادونو خپلواکي ترلاسه کړه او د نړۍ پاملرنه يې د ځان په لور ورجلب کړه.

که څه هم په دغو هېوادونو کې يو شمېر واکمنان د شوروي اتحاد همغه پخواني کمونستان وو، چې په ځينې ځايونو کې د هغوی په لرې کېدو باندې د لوېديځ او روسيې ترمنځ اختلافات راپورته شول او وروسته بيا دغه اختلافات په بحرانونو او جګړو واوښتل.

په ٢٠٠٣ او ٢٠٠۴ کال په جورجيا او اوکراين کې د روسي - پلوو پر خلاف پاڅونونه پيل شول، چې د ګلاب او نارنجي انقلابونو په نامه ياد شول. دغو پاڅونونو روسي‌پلوي واکمنان ګوښه کېدو ته اړايستل او له کبله يې د روسيې او لوېديځ اړيکې ورځ تر بلې کړکيچنې شوې. په ٢٠٠٣ کال چې په جورجيا کې لوېديځ پلوی حکومت راغی نو د جورجيا او د روسيې ترمنځ د «ابخازيه» او «سويلي اوزيتي» په سيمو لانجې پيل شوې. په ٢٠٠٨ کال کې دغه لانجې اوج ته ورسېدې او روسيې پر جورجيا يرغل وکړ چې له کبله يې د ابخازيې سيمې خپلواکي اعلان کړه.

همداراز په ٢٠٠۴ کال کې په اوکراين کې روس -پلوي مشر "وېکټر يانوکووېچ" ټاکنې وګټلې؛ وروسته بيا خلکو د ټاکنو د پايلو پر خلاف نارنجي پاڅون پيل کړ، چې له کبله يې د اوکراين سترې محکمې د بياټاکنو پرېکړه وکړه او په دويم ځل ټاکنو کې لوېديځ پلوي "وېکټور يوشېنکو" بريالی شو او په دې توګه د روسيې او لوېديځ اړيکې خرابې شوې؛ ځکه پوتين لوېديځ پر دې تورناوه چې د يانوکووېچ د بريا پر ضد پاڅونونو ته د لوېديځ له خوا لمن وهل شوې ده.

په ٢٠١٠ کال کې بيا ټاکنې وشوې او دا ځل روس‌پلوي وېکټريانوکووېچ يو ځل بيا واک ته ورسېد او د هېواد بهرنۍ سياست يې پر ناپيیلتوب متکي کړ. دغه حکومت له ٢٠١٠ څخه تر ٢٠١٣ کال پورې له اروپايي اتحاديې او روسيې سره ښې اړيکې درلودلې، خو کله چې وېکټر يانوکوېچ له اروپايي اتحاديې سره د ملتيا ټرون پر سر خبرې اترې پيل کړې او خبره يوازې لاسليک ته پاتې شوه، نو وېکټر يانوکوېچ د ماسکو د فشار له کبله په دغه ټرون

لاسلیک ونه کړ، چې له امله یې په اوکراین کې د یانوکوویچ پر خلاف پاڅونونه پیل شول او بیا په ۲۰۱۴ کال کې په یوه انقلاب بدل شول.

د ۲۰۱۴ کال په ټاکنو کې لویدیځ پلوي سوداګر پوروشینکو واک ته ورسید او په جون میاشت کې یې له اروپایي اتحادیې سره د ملتیا تړون لاسلیک کړ؛ خو د شوروي پلوي یانوکویچ په لرې کېدو او له اروپایي اتحادیې سره د تړون له کبله د اوکراین په ختیزه برخه کې پاڅونونه پیل شول او د روسیې پر غل ته لاره پرانیستل شوه، چې له کبله یې وروسته د کریمیا روس‌نژاده سیمه د یوې ټولپوښتنې له لارې د روسیې برخه وګرځېده.

لویدیځ د اوکراین په قضیه کې تل د روسیې پر کړنو نیوکې کړې دي او ماسکو یې د دغه هر څه عمده لامل بللی دی. له همدې کبله یې له تېرو دولسو میاشتو راهیسې پر روسیې سخت بندیزونه هم لګولي دي او خپلې اړیکې یې تر ډېره حده له روسیې سره منجمدې کړې دي. د دې تر څنګ روسیه له لویدیځ سره د سوریې او ایران په قضیه کې هم اختلافات لري.

د روسیې ګواښ او دلویدیځ غبرګون اروپا ته د امریکا د دفاع وزیر سفر: د پوتین د تازه څرګندونو پرضد د امریکا دفاع وزیر ایشتن کارتر، اروپایي هېوادونو ته سفرونه وکړل. په دغو سفرونو کې تر ټولو مهم دا وو، چې امریکا به له دوو کلونو وروسته بیا اروپا ته خپلې وسلې ولېږدوي. په دې تړاو د ایستونیا، لیتونیا، لاتیویا، بلغاریا، رومانیا او پولینډ چارواکو د امریکایانو د وسلو کوربه‌توب منلی دی. ویل کېږي چې امریکا به اروپا ته د یوه غونډ د اړتیاو په اندازه وسلې ولېږدوي.

**د ناټو غبرګون**: په اوکراین کې له یوه کال راهیسې د اختلافاتو، جګړو او د پوتین د وروستیو څرګندونو چې روسیه به ۴۰ قاره‌ویشتونکي توغندي په خپل اتومي سلاکوټ کې شامل کړي، تر ډېره حده اروپا پارولې ده. د روسیې د دغو کړنو په غبرګون کې ناټو په پولینډ کې د پوځي عملیاتو تمرینات پیل کړي او د جون په ۲۴ او ۲۵ نېټه یې د دفاع وزیرانو غونډه هم وشوه، چې پکې د اوکراین، روسیې او افغانستان په تړاو خبرې اترې وشوې. په دغه غونډه کې پرېکړه وشوه، چې ناټو به د خپل غبرګون ځواک پوځي قطعې د سرتېرو شمېره له ۱۳ زرو څخه ۴۰ زرو ته لوړه کړي، همدا راز به خپلې اتومي وسلې هم نوې کړي.

د دې تر څنګ به ناټو په شپږو اروپایي هېوادونو کې د ناټو وړې وړې قوماندانۍ هم جوړوي، چې تر ډېره به د ختیزې اروپا په بلغاریا، ایستونیا، لاتویا، لیتونیا، پولینډ او رومانیه کې وي. دا حالت په ښکاره توګه د سړې جګړې د سیناریو ښودنه.

**پر سیمه او نړۍ د پیل شوې سړې جګړې اغېزې:**

که څه هم امریکایان ځانونه د "دویمې" سړې جګړې له پیلېدو څخه ژغوري او په همدې موخه یو ځل د امریکا ولسمشر اوباما وویل، چې دا نوې سړه جګړه نه ده، بلکې دا د روسیې له خوا د اوکراین خوښه نه منل دي . د امریکا دفاع وزیر هم اروپا ته په سفر کې ورته خبره کړې، چې دوی د سړې جګړې پیلول نه غواړي ؛ خو له دغو ډیپلوماتیکو احتیاطونو سره سره، د روسیې او لویدیځ ترمنځ نوې سړه جګړه په یوه غیر رسمي بڼه پیل شوې ده.

اوسمهال روسیه او لویدیځ په سړه جګړه کې سره بوخت دي؛ خو له روسیې وراخوا دغه سړه جګړه سوریې، ایران، اوکراین ، ختیځې اروپا او منځنۍ آسیا ته هم غځېدلې ده. روسیې په ملګرو ملتونو کې د بشار الاسد پر خلاف د لویدیځ قراردادونه ویټو کړل او ایران ته یې د Antey-۲۵۰۰هوایي دفاع سیستم پلورلو ورانديز کړی. په اوکراین کې یې د کریمیا سیمه راخپله کړې او په ختیځه اروپا کې یې هم له ناټو سره رقابت پیل شوی دی. همدا راز نوې سړه جګړه به له یوې خوا په سیمه کې د وسلو پر سر رقابت پیدا کړي او له بلې خوا که چېرې نړۍ بیا سره ووېشل شوه، ښایي کورنۍ جګړې هم زیاتې شي. ځکه د پوتین وروستۍ څرګندونې چې دوی به ۴۰ لویه وچه ویشتونکي توغندي په خپل اتومي سلاکوټ کې شامل کړي، اروپا او امریکا پارولې دي .امریکا هم د پوتین د دې خبرې په غبرګون کې په اروپا کې له خپل یوه پوځي غونډ سره د ټانکونو او نورو تجهیزاتو د ځای پرځای کولو تابیا کوي او په بل اړخ کې ناټو هم د غبرګون -ځواک قطعې د سرتېرو شمېره له ۱۳ زرو څخه ۴۰ زرو ته لوړه کړې او هڅه کوي، چې خپلې اتومي وسلې نوې کړي. د دې ترڅنګ به په اروپا کې شپږ وړې وړې قوماندانۍ هم جوړوي. دغه هر څه په سیمه په تېره بیا په اروپا کې د وسلو رقابت رامنځته کوي او له کبله به یې په هر هېواد کې د وسلو لوی شرکتونه نور هم ځواکمن شي. دغه د وسلو لوی شرکتونه به بیا په اوږده مهال کې د نړۍ پر امنیت هم ژوره اغېزه وښندي.

که په اروپا کې همدا شان د روسیې او اروپایي ټولنې ترمنځ سړه جګړه او اړودوړ روان وي، نو دا به د اروپا په اقتصادي حالت ژوره اغېزه وښندي. د بیلګې په ډول په ۲۰۱۴ کال کې د اوکراین صنعتي وده شل سلنه او اقتصادي پرمختګ یې ۱۰ سلنه راښکته شوی دی. د ایکانومېسټ د یوې څېړنې له مخې د سړې جګړې تر پای پورې د نړۍ تقریباً ۱۸ سلنه خلکو د کورنیو جګړو ناخوالې لیدلې وې، ځکه د سړې جګړې یوه لوري به له یوه مخالف او بل لوري به له بل مخالف څخه ملاتړ کاوه او په دې توګه په نورو هېوادونو کې نیابتي او کورنۍ جګړې روانې وې؛ خو د سړې جګړې له

ختمېدو سره نږدې د سرې جګړې د پړاو په پرتله کمې کورنۍ جګړې ولیدلې؛ ځکه دا ځل مخالف ملاتړ کوونکي نه وو.

د دې ترڅنګ دغې سړې جګړې روسیه او چین له یو بل سره نور هم نږدې کړل. البته که روسیه غواړي، چې چین یې په دغه سړه جګړه کې ملګری وي، نو باید د چین په سویلي سمندر کې له بیجینګ څخه ملاتړ وکړي.

که څه هم امریکا او روسیې له تېرې یوې لسیزې راهیسې اختلافات لرلي دي؛ خو له د دغو اختلافاتو سره سره بیا هم دواړو هېوادونو په یو شمېر ډګرونو -لکه په افغانستان کې - له یو بل سره همکاري کړې دي. خو دغې نوې سړې جګړې د امریکا او روسیې ترمنځ د همکارۍ په ډګرونو هم اغېزه بښندلې او روسیې یو څه موده وړاندې د ناټو پر مخ اکمالاتي لاره هم بنده کړه.

پای

(د ستراتیژیکو څېړنو مرکز)



**د دغو نسخو په کومک کولای شئ چې د څو ناروغیو اعلاج په خپله او په کور دننه وکړئ.**

**۱ - د سخت سر درد له پاره مڼه سپینه کړئ او څه مالګه ورباندې واچوئ سحر یې په نهاره وخورئ د سر درد څخه به خلاصی پیدا کړئ.**

**۲ - د ګیس د علاج له پاره د کاشوغې څلورمه برخه دوړو سوډا په یو ګیلاس اوبو کې واچوئ او ویې څښئ.**

**۳ - د خولې د بدبوۍ له پاره د یوې کېله او لږ څه شات سره ګډ کړئ او د خولې زخمي شوي ځایونه پورې کړئ، انشاالله ښه به شي.**

**۴ - اوچت فشار چې له وجې یې هر کس په دې دور کې تنګ کړی دی، د یوې کاشوغې امله پوډرو سره یو ځای په یو ګیلاس کې وڅښئ او فشار مو عادي کړئ.**

**۵ - د غاښونو د صفایي له پاره دوړو سوډا، لږه مالګه او لیمو سره ګډ کړئ او بیا ورباندې د برش پواسطه غاښونه پاک کړئ: د غاښونو له درد څخه به خلاص یی.**

# معضله ء خونین ، برما ،

## وبی چارگی ، سازمان همکاری اسلامی ،

(حبیبی سمنگانی)

سازمان همکاری اسلامی " در سنه ء نوزده صد و شصت ونه میلادی یعنی چهل و شش سال قبل از امروز به صفت بزرگ ترین نمائنده ء کشور های اسلامی بنیان گذاری شد ، این سازمان با داستن پنجاه و هفت عضو در چهر قاره ء جهان دومین بزرگ ترین سازمان بین المللی در جهان پنداشته می شود ، این سازمان که در واکنش به حمله ء یهودیان بر مسجد بیت المقدس تاسیس شد ادعا دارد که برای دفاع از یک و نیم ملیارد مسلمانان جهان می کوشد ، دفتر مرکزی این سازمان در شهر ساحلی " جده " در عربستان سعودی قرار دارد .

نام این سازمان در زبان انگلیسی " آرگنائزیشن آف اسلامک کوآپریشن " است که مخفف آن در الفبای انگلیسی " او آی سی " میگردد ، عجیب یک اتفاق است که " او آی سی " یک جمله ء مستقل در زبان انگلیسی نیز است که به معنای " اوه ، من می بینم " می باشد ، و این جمله در هنگام یک حادثه از روی تعجب گفته می شود و یا هم در دوران خشم از روی تهدید استعمال می گردد ، چنانکه در زبان دری نیز در حالت غضب گفته می شود " من ترا خواهد دیدم " ،

امروز بدون شک " او آی سی " یعنی مخفف "سازمان همکاری اسلامی " نیز جز همان دو معنای جمله ء انگلیسی دیگر مفهومی ندارد ، حاصل اینکه اگر امروز واژه ء " او آی سی " را به زبان آورده شود هیچ کسی معنای " سازمان همکاری اسلامی " را اخذ نمی کند بلکه لازم این معنی را که صرف تعجب کردن و نگریستن است درک می کند ، زیرا از روز نخست تا اکنون این سازمان جز " تعجب کردن و نگریستن " هیچ گامی در صحنه ء عمل نبرداشته است.

مثلا در طی پانزده سال گذشته یعنی از آغاز قرن بست و یک میلادی تا این ساعت چه روزهای تلخی نبوده است که در کشورهای مسلمان نشین نگذشته باشد ، از فلسطین ، افغانستان ، عراق ، شام ، سودان ، لیبیا تا یمن تحولات خونین و سنگین رخ داد که باعث قتل و معلول و آواره شدن ملیون ها مسلمان شد و و لیکن این سازمان درین مدت روح فرسا ساکت بماند ، بیش از صد ملیون مسلمان در کشورهای غیر اسلامی همچون چین ، روسیه و هند و کشورهای اروپای و امریکای بی جا تعزیر شدند و از انجام دهی فرامین بنیادی دین اسلام منع

کرده شدند و این سازمان همچنان سکوت بر لب بماند ، امروز صد ها هزار مسلمانان روهنگیای در برما نه صرف اینکه حق شهروندی محروم میگردند بلکه با اجبار از کشور رانده می شوند و آن ها برای سر پناه آشیانهٔ ندارند ، حتی اگر به امید کشور مسلمان نشین بنگلا دیش و یا اندونیزیا در بحر سفر می کنند رژیم های مستبد این دو کشور نمی گذارند این آوارگان بی خاک و وطن از کشتی های کوچک و پر خطر فرود آمده در سواحل بنگلا دیش و اندونیزیا سکونت بکنند ، لهذا نا گزیر اند هر نوع شکنجهٔ وحشیانهٔ بودای ها را متقبل شده تا آخرین رمق حیات درمیان شعله های آتش بسوزند و لیکن این بار نیز "سازمان همکاری اسلامی" جز نگریستن دیگر کاری انجام نداد.

سازمان فوق الذکر معمولاً هر سه سال بعد نشست سربراهان کشورهای مسلمان نشین را دائر میکند و می تواند قبل از سه سال نیز نشست اضطراری برپا بکند ، چنانکه در سالهای "نوزده صد و نود و هفت میلادی" ، "دو هزار سه میلادی" و "دو هزار و پنج میلادی" سه نشست اضطراری برگزار نمود ، آیا این سازمان نمی تواند برای حل یابی معضلهٔ مسلمانان روهنگیای یک تجمع اضطراری تشکیل بدهد ؟ و لیکن سوال اینست آیا آخرین نشست اضطراری که ده سال قبل دربارهٔ حل بحران فلسطین و عراق صورت گرفته بود مثمر و منتج واقع شد ؟ هرگز نه ............پس چگونه توقع داشته باشیم که اگر ( فرضاً ) یک نشست سربراهان صورت پذیر گردد در زندگانی مسلمانان برما یک تحول مثبت و حیات بخش خواهد آورد ، به همگان عیان است به دلیل بی اعتمادی و نا باوری بزرگ که درمیان اعضاء این سازمان وجود دارد هرگز به یک اتفاق نمی رسند ، بلی اتفاق که درد های مسلمانان روهنگیای را مداوای شافی بکند.

بدون تردد ، چنانکه دولت مردان رژیم کشورهای مسلمان نشین از سرمایهٔ دین پروری و مسلمان دوستی محروم اند همچنان زمام داران این سازمان نیز از درد های بیکران مسلمانان جهان نابلد اند ، بلکه واشگاف باید گفت این سازمان جز چند ساختمان مجلل ، چند دانشگاه ، یک اندازه پول خیراتی و صد ها دیپلمات آسوده خاطر دیگر چه در اختیار دارد ؟ بلی ، این اختیار را نیز دارد که کشوری را به عضویت سازمان سرفراز بکند و عضویت کشوری دیگری را معطل بکند ، و لیکن در برابر کشور "برما" که نه خواهان شمولیت در این سازمان است و نه هم هراس از معطل شدن دارد این " سازمان بی چاره" چه کرده می تواند ؟

بخت الرحمن بخت

ارناوډ فان ډورن چې د هالینډ او سیدونکي دي هغه کس دي چې د رسوالله صلی الله علیه وسلم په اړه یی فیلم جوړ کړي او دغه فیلم کي یی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په اړه سپکي خبري کړي وي.

نوموړي وایی کله چې می د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خلاف فیلم جوړ کړ او دغه فیلم می ننداري ته وړاندي کړ، دنړی په ګوټ ګوټ کي د مسلمانانو له سختي غصي او کر کي سره مخامخ شوم دنړی مسلمانانو باندي دغه فیلم ډیر بد اثر وکړ.

ارناوډ وایی کله چې می د مسلمانانو له لوري په دومره لوړه کچه باندي زما دفیلم په مقابل کي مخالفت او غضب تر ستر ګو شو، لږ فکر می وکړ او سوچ یو وړم څه لامل دي چې مسلمانان و رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په دومره درناوي قائل دي او د هغه و شخصیت ته د بی احترامي په مقابل کي هر ډول سر بښندني ته حاضر دي نوموړي وایی دمسلمانانو قهر او غضب دی ته اړ کړم چې د اسلام په اړه مطالعه وکړم، د مسلمانانو مسجد ته لاړم هلته می په خپله ژبه باندي ژباړل شوي قران شریف اود سیرت کتابونه موندل، کله چې می دقران شریف مطالعه پیل کړه را باندي یی ډیر اثر وکړ مطالعه دومره خوندوره وه چې دنوور کتابونو کتل او لوستل می

ور ته پریښود دوایی هغه ایاتونه چې پر ما باندي یی ډیر اثر وکړ او زما په ژوند کي یی انقلاب را وست هغه د سوره النساء له ۳۶ بیا تر ۴۰ پوري ایاتونه وو، نوموړي وایی دغو ایاتونو له قران شریف سره دومره مینه او محبت را زیات کړ چې شپه او ورځ به می قران شریف لاس کي وو، زړه می غوښتو چې چیري لاړ شم کوم مسلمان عالم پیداکړم او سمدستي د شهادت کلمه ووایم، نوموړي وایی مسجد ته به ور تلم مسلمانان به می لیدو لمنځونه به یی کول زما سره د اسلام ددین په اړه څه نور سوالونه هم پیداشوي وو تر څو دغو سوالونو ته جواب پیداکړم او د اسلام په حقیقت او څرنګوالي باندي نور هم پوه شم، ددغو سوالونو دجوابونو دپوښتلو لپاره دمسجد له امام سره کښیناستم، دمسجد امام صاحب د سیرت او قران شریف په څنګ کي څه نور دیني کتابونه هم راکړو چې ددغو کتابونو په مطالعه کولو سره زما دټولو سوالونو جواب وشو او ددرو میاشتو مطالعي او دمسجدونو د ائمه وو ناستي دي ته تیار کړم چې د شهادت کلمه ووایم او مسلمان شم.

فان ډورن وایی زما د ژوند تر ټولو مهم او نه هیریدونکي پیښه زما د مسلمانیدو صحنه ده نوموړي وایی کله چې می د شهادت کلمه ویله داسي احساس




مي كاوو چي كوم كس زما پر اوږو لاسونه ايښي راته وايي ته اوس مسلمان شوي، وايي ډير مي وژړل او د ژوند دغه صحنه به مي هيڅكله هيره نشي.

د اهتديت بالقرآن له يوي شبكي سره دخبرو پر مهال نوموړي وويل د اسلام او مسلمانانو په خلاف د حزب الحريه (د ازادي دګوند ( چي د اسلام او مسلمانانو په خلاف ګوند دي غړي وم، زموږ دنده داوه چي خلكو ته اسلام ناوړه دين ځر ګند كړو او ويي ويره وو چي اسلام د ويري او وحشت دين دي، نو دغه لامل وو چي چي د فتني په نامه مو فيلم جوړ او د فيلم نوم مو عربي كيښود تر څو خلكو ته واضح كړو چي په عموم كي ټول عرب اهل فتنه دي.

نوموړي وايي د فيلم له وړاندي كولو وروسته چي كله د نړۍ ټولو مسلمانانو د فيلم مخالفت وكړ زه يي دي ته اړ ايستم چي لږ فكر وكړم، څومره خلګ مي خفه كړو د څومره زيات شمير خلكو قهر او غوصه مي را وپاروله.

فان ډرون وايي د فيلم په خلاف د مسلمانانو غم او غوصي راته دااحساس راكړ چي ياره دا څرنګه كيداى شي چي زه دي صحيح او ۱.۲ مليارډ خلګ دي خطاوي.

ډرون وايي قران العظيم الشان يي لاربښود دي، او خلكو ته مي داوينا ده چي يواځي هغه اسلام باندي دي بسنه او اكتفا نكوي چي د اعلان او سياسي ځيرو له لوري وړاندي كيږي، كه څوك غواړي چي رښتيا د اسلام په حقيقت پوه شي د اسلام مطالعه دي پيل كړي او د اسلام له رښتنيو عالمانو سره دي ناسته پاسته اختيار كړي.

## دليلة القدر دشپې نښي

**:عن عبادة بن صامت رضي الله عنه ان سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن ليلة القدر فقال في رمضان في العشر الاواخر فانها في ليلة وتر في احدى وعشرين او ثلث وعشرين او خمس وعشرين اوسبع وعشرين او تسع وعشرين او آخر ليلة من رمضان من قامها ايمانا واحتسابا غفر له ماتقدم من ذنبه ومن امار اتها انها ليلة بلجة صافية ساكنة ساجية لا حارة ولا باردة كان فيها قمرا ساطعا ولا يحل لنجم ان يرمي به تلك الليلة حتى الصباح ومن اماراتها ان الشمس تطلع صبيحتها الاشعاع لها مستوية كانها القمر ليلة البدر وحرم الله على الشيطان ان يخرج معها يومئذ.( ۱)**

ژباړه: عباده بن صامت رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه د قدر د شپې پوښتنه وکړه رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل: دغه شپه د روژې د مياشتي په آخرو لسو شپو كي پر طاق، طاق تاريخ باندي ده څوک چي په دغه شپه د ايمان او ثواب په نيت عبادت وكړي نو تير ګناهونه به يي ټول وبخښل سي. نښاني يې دادي چي دغه شپه روښانه، پراخه او پاكه شپه ده ارامه شپه ده ميانه ده نه ډيره يخه ده او نه ډيره ګرمه ده ګويا (د انوارو د اوريدو ) په وجه سپوږمۍ صفا ده په دغه شپه كي به په شيطانانو پسې ستوري نه ويشتل كيږي او د دغه شپې نښاني دادي چي لمر د دغه شپي په سهار د پلوشو پرته راخيږي برابر لكه د څوارلسم سپوږمۍ او په دغه سهار د لمر ختو په وخت كي الله جل جلاله شيطانان د راختو څخه منعه كړي. (په خلاف د نورو ورځو چي شيطانان د لمر ختو سره را پورته كيږي )

# آثاروعلایم خون درشناسایی مجرمین

## ونظریات علمای اسلامی درین زمینه

محمد عثمان (علمی)

درکنارشواهد ومدارک دیگربرای دریافت آثاروعلایم جرمی درمحل حادثه مانند، (نشانها وآثارانگشت، ناخونها، آثارپا، جراب، موهای بجامانده، وغیره) یکی هم آثارولکه های خون است که اکثرمحقیقین به آن برمیخورند وازین نوع شواهد ومدارک درکشف وشناسایی مجرمین کمک میگیرند. اینک دررابطه باآثاروعلایم خون به شما خوانندگان محترم بطورفشرده معلومات داده ونقش علمای اسلام را درین رابطه برای شما بیان خواهیم کرد.

یکی از آثاروعلایم بسیارمهم درجنایاتیکه حیات انسان دران تحت تهدید قرارگرفته باشد آثاروعلایم خون است .خون یک مایع سرخرنگ بوده که متشکل ازمحلول نمکی یعنی پلازما (Plasma) وعناصرحجروی میباشد که این عناصرحجروی ازکرویات سرخ ایروسیت(Erythrocyte) وکرویات سفید لوکوسیت (Leycocyst) ترکیب یافته، است. سیروم خون ماده شفاف وزرد رنگی است که پس ازحادثه یک جرح وبعد ازتشکیل لخته خون ازآن جدامیگردد . ازسیروم درامتحانات گروپ خون استفاده خوبی بعمل میآید .

این ماده خون درعضویت انسان وحیوان وظایف عمده را ازقبیل رسانیدن اکسیجن ازشش ها به تمام انساج بدن وهم انتقال مواد غذایی ازامعاء بالاخره طرح مواد اضافی مضره وجود مثل تیزاکاربن ازداخل انساج واعضاء طرح کننده چون گرده وشش ها به عهده دارد.

از نظر تحقیقات جنایی این ماده ازاهمیت زیاد برخورداراست، درگذشته که خون شناسی (سرولوژی) انکشاف نکرده بود مردم به آن اهمیتی قایل نبودند، اولین کسی که درین رابطه خدمات اساسی ومهم انجام داد دانشمند المانی بنام اولین هوت(Uhlenhuth) بوده که بتاریخ ۱۹۰۹میتودی را بغرض تفریق انواع خون ومخصوصا خون انسان وحیوان کشف نمود، وبراساس آن درالمان درواقعه قتل یک طفل قاتل مذکوربه طریقه اولین هوت ازروی خون شناسایی گردید. اول اوادعا کرد که خون ازحیوان است اما بعد ازتشخیص درلابراتوارمعلوم شد که خون قاتل است. تاسال ۱۹۰۰ هنوزگروپ خون مشخص نشده بود، درهمین سال لندشتایر (Lindeshtainer)کشف نمود که انسانها هرکدام دارای گروپ خون متفاوت است.

خوشبختانه علمای اسلام ازبدو پیدایش دین مبین اسلام به این امرتوجه داشته اند، وبرای اثبات مسائل جرمی ازاثارخون استفاده نموده اند. درزمان خلافت عمر فاروق (رضی الله عنه (دونفرآمده وهرکدام ادعای میراث

نمودند وهریک همدیگررا متهم میکردند که فرزند واقعی پدرنیست. شاهد هم نداشتند، امیر المومنین گفت بدون شاهد مشکل است، بعد روبطرف عماربن یاسر (رضی الله عنه) نموده گفت که چه باید کرد؟ بهتراست درین رابطه نزد علی (رضی الله عنه) وجعه مراجعه صورت گیرد زیرا اصحاب درمورد ایشان همدیگررا خطاب نموده میگفتند، (اقضاکم علی) درقضاوت ازهمه بهترحضرت علی (رضی الله عنه) است عمررض گفت: که خداخیرت بدهد چیزی را که فراموش کرده بودم یادم آوردی. این دونفررا نزد علی (رضی الله عنه) ببر، وقضیه را برای اوبیان کن.

حضرت عمار میگوید آن دو نفر را نزد حضرت علی (رضی الله عنه) بردم قبل ازآنکه ازدروازه علم وارد شوم فرمود :این دونفررا به دارالشرع ببروخودنیزتشریف آورد. به آن دونفرفرمود راست بگویید؟ درمیان شما دونفرچه کسی فرزند واقعی شخص است؟ هردوادعا کردند که پسرسلبی وحقیق شخص اند. فرمود قبرپدرشما کجاست؟ آنها نشانی قبررا دادند، بیکی ازآنها فرمود: این قبررا باز کن، واستخوان ازآن بیرون آور! وقتی استخوان را آوردند، حضرت علی (رضی الله عنه) به حجام (کسی که ازرگ خون میکشد) امرکرد ازهردوخون بگیرد، سپس خون هردورا دردوظرف ریخت واستخوان راتکه نموده ودرهردوظرف یک پارچه ازآنرا گذاشت، وروی هردو ظرف سرپوش گذاشت .بعد ازساعتی سرپوش را برداشت. وحاضرین دیدند که دریک ظرف استخوان تمام خون را جذب کرده واستخوان پرازخون شده است، ودرظرف دیگراستخوان وخون کاملا جدا هستند، وباهم آمیخته نشده اند. حضرت علی (رضی الله عنه) بیکی ازآنها فرمود : اگرتوپسرحقیقی وسلبی این بودی خون تودراستخوان اوجذب میشد. بعد ازآن مال را دراختیارشخصی قرارمیدهد که خونش را استخوان کاملا جذب کرده بود. درین وقت عمر (رضی الله عنه) فرمود: خداوند مرا اززندگی بدون شما حفظ کند، ای ابوالحسن.

در این قضیه جالب چیزهای بسیارعجیب به چشم میخورد، یکی اینکه روایت نسبی وخونی که بین فرزند وپدراست حتی بعد ازمرگ دراستخوان پوسیده پدر باقی میماند. و پدر میتواند با استخوانهای پوسیده خویش نیزپسرخودرا بشناسد، خون اورا همان قسمیکه فرزند خودرا درزندگی به آغوش میگیرد ومحبت میکند، سبحان الله همینکه اسلام میگوید، مرگ پایان حیات نیست، دراین قضیه به چشم دیده میشود، اگرمرگ پایان حیات باشد، وباآن تمام روابط ازهم جدا شود، دیگر چطورمیتوان قبول نمودکه استخوانهای پوسیده پدرخون پسرخودرا میشناسد واورا به آغوش میکشد سبحان الله همان قسمیکه اسلام انسان را بعد ازعبادت خداوند (جل جلاله) متوجه خدمت والدین میسازد در اینجا ثابت میشود که این روابط عمیق است.

# مجاهده! دا ستا عزم ته سلام

(محمود غازي)

له څه وخت راهیسي چي مجاهدینو د عزم عملیاتو عزم کړی او عزم يې عملا پیل کړی یرغلګر او داخلي دښمن يې د خورا ډیرو ځاني، مالي، لوژیستیکي، ترانسپورتي، روا ني او سیاسي زیانونو په ګرداب کي ایسار کړی دی، د عزم توپاني څپود هیواد په ډیرو برخو کي د اردو، پولیسو او پیټراییس ښځو ملېشو پوستې، سمڅي او کوډلې ګروبې کړې او په لویو ښارونو او آن کابل کي يې دهیواد پلورونکو د عیش ونوش قصرونه چپه کړل.

عزم په شمال او جنوب، ختیځ او لویدیځ کي له ډیرو پراخو سیمو څخه دد ښمن دفساد، ګمراهۍ، غلامۍ او لوټماري، کرغیړن ګیلم ورټول کړ، شریعت يې پکي قایم کړ او د ځوریدلي ملت د سر او مال حفاظت يې تضمین کړ.

عزم چي د روان کال درجب المرجب د میاشتي په۲مه چي دثور له ۴مي سره سمون خوري سهار وختي د الله اکبر په ملکوتي نعرو سره پیل شو په لومړۍ ورځ يې پر یرغلګرو ځواکونو او د هغوی دګټو د مدافعینو او چوپړ مارو پراډو او پټنځایونو باندي ۳۲۷ بریدونه ترسره کړل، د عزم په دوهمه او دریمه ورځ میدیاکي د دښمن ساندي، ژړاوي، د مرستي او سقوط سقوط ناري شوې.

د عزم د مبارکو عملیاتو مخه په کابل کي هم ونه نیول شوه چي دا شغالګر دښمن ترفضایي او هوایي څارلاندي دی او د مځکني امنیتي پوښښ په لومړۍ درجه کي قرار لري، پر پلیس هوټل بریدډیر خارجیان د مرګ په خوب بیده کړل، حتیل میلمستون یا ګیټس هاوس تر اورلاندي ونیول شو، د کابل هوایي ډګر نظام قراول کي فدایي بریدنیوا کګرو ته درنه مرګ ژوبله وارړوله ،دعدلیي وزارت د موټرو په تم ځای کي استشهادي برید په فساد کي غرق ظالم ثارنوالان په خپله سزا ورسول، دارګ دروازه کي چاودنه وشوه، او د اسلامي قوانینو، ملي

نواميسو، ارضي تماميت او استقلال د پلور پر ماركيټ چي دوی ورته ولسي جرګه وايي زيان اړونكى هېښونكي بريد وشو، دې بريدونو دښمن ته وښوده چي كه هر څومره سميټي ديوالونه او د خاورو بوجونه پرځان ورتاو كړي د ملت له قهر او انتقام څخه به خلاص نشي.

د عزم عملياتو د ثقل مركز تر اوسه لا كندوز ولايت دى، عزم د كندوز ولايت له شپيته سلني څخه د كابل د لاسپوڅي رژيم پاته شوني جارو كړل، د امام صاحب، دښت ارچي او چهاردرې ولسوالۍ يې په بشپړه توګه فتحه كړې، ډېري نوري سيمي يې ولكه كړې او دښار تر دروازو پوري مجاهدين ورسيدل د ګورتېپې او تلاوكه ستراتيژيكي سيمي يې ونيولې او لاهم مجاهدين د پرمختګ په حال كي دي.

په ټول شمال كي د عزم له پيله د فتحو لړۍ همداسي په جم و جوش سره روانه ده، په بغلان كي مجاهدينو ګڼې سيمي د دښمن څخه پاكي كړې، په سرپل كي يې دښمن پر ګونډو كړ، د بدخشان جرم او وردوج كي يې د ګډ حكومت د اردو، پوليسو او اربكي ملېشو ګڼ تعرضونه پرشا وتمبول او يمګان ولسوالي يې د ډېرو غنيمتونو سره مكمله ونيوله، په فارياب كي يې د ګڼو سيمو ترڅنګ د چهلګزي ولسوالي فتحه كړه، په بادغيس كي يې د جوند ولسوالۍ تر يو مخيزي نيوني سربېره په نورو ولسواليو كي هم ډيري سيمي ترخپلي سلطې لاندي راوستلې.

د غزني دناوې ولسوالي چي له تېرو لسو كلونو راهيسي د اسلامي امارت د امن سپين توغ پكي رپاند وو، ګډ حكومت يې د نيولو په موخه د سلهاوو ټانګونو او مختلفو محابوي نقليه وسايطو په بدرګه د بيرته نيولو عمليات پيل كړل، خو د مجاهدينو د ټينګ عزم له امله مختوري شول، اتلو مجاهدينو د غزني ولايت د ډېرو پراخو سيمو پر نيولو سربيره د خوږيانو ولسوالي هم په بشپړه توګه فتحه كړه.

عزم په مركزي افغانستان كي هم دښمن د شكست او شرمندګۍ وكندي ته ورټېل واهه، د دايكنډي په مختلفو ولسواليو كي قهرمانو مجاهدينو د كرايي عسكرو ګڼې پوستې ونيولې او د ګيزاب ولسوالۍ د سميټي ودانۍ پرته ټوله سيمه يې فتحه كړه، د ارزګان ولايت په خاص ارزګان، چارچينو، دهراود، چوره، او نورو ولسواليو كي يې ډيري زياتي سيمي د دښمن له ناپاک وجود څخه پاكي كړې او د امن سپين توغ يې پري ورپاوه، د غور ولايت د شينكوټ، تېوره، دولينه او نورو ولسواليو ګڼې سيمي يې تر جهادي پوښښ لاندي راوستلې او دښمن يې

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ په ورسک سیمه کې د دښمن عسکرو په مجاهدینو تعرضي برید وکړ چې له سخت مقاومت سره مخ شول او په پای کې له سیمې وتښتېدل،وروسته عسکرو په ماښو کلي باندې د درنو وسلو ډزې وکړې چې له امله یې ۱ ماشوم شهید او ۳ ټپیان شول. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې په ګزمه برید، ۲ موټر ویجاړ شول

د کونړ ولایت د سرکانړو ولسوالۍ په ناوې سیمه کې د دښمن په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې ۱ اسرف او ۱ رینجر موټر تخریب شول اما د مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې په پوسته برید، ۱ پولیس وژل شوی

د کونړ ولایت د سرکانړو ولسوالۍ په ناوې سیمه کې د سرحدي پولیسو په پوسته د دهشکې او پیکا برید وشو، په برید کې ۱ پولیس ووژل شو او ودانۍ ته هم پوره زیان واوښت. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

## اسمار کې په ګزمه برید، ۱ ټانګ ویجاړ شو

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په ډمبرو سیمه کې د دښمن په ګزمه برید وشو، په برید کې ۱ ټانګ تخریب شو او عسکرو ته هم درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۳-۰۶-۲۰۱۵

## اسمار کې په پوسته برید، ۱ عسکر وژل شوی

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په ډمبرو سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید په ترڅ کې ۱ عسکر قتل او بل مرګوني ټپي شو. ۲۳-۰۶-۲۰۱۵

## مروره ولسوالۍ ودانۍ په هاوان وویشتل شوه

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ ودانۍ په هاوان وویشتل شوه چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۳-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې عسکر په درازکوف قتل شو

د کونړ ولایت د سرکانړو ولسوالۍ په ناوې سیمه کې یو مزدور عسکر په درازکوف وویشتل شو چې ځای په ځای یې ساه ورکړه. ۲۳-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې په پوستو برید، ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله اوښتې

د کونړ ولایت د سرکانړو ولسوالۍ په بارآباد سیمه کې د اربکیانو او دغه راز په عیني وخت کې د سرحدي پولیسو په پوسته بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۱ عسکر قتل او ۲ نور ټپیان شول. ۲۳-۰۶-۲۰۱۵

## وټه پور کې په عسکرو بریدو شو

د کونړ ولایت دوټه پور ولسوالۍ په مناګې سیمه کې بیس ته نژدې په پلیو عسکرو برید وشو چې ۲ تنه عسکر پکې ټپیان شول. ۲۳-۰۶-۲۰۱۵

## اسمار کې په پوسته او ګزمه بریدونه شوي

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په ډمبرو سیمه کې د دښمن په پوسته او ګزمه بریدونه وشول چې په ترڅ کې یې ۲ عسکر ټپیان شول. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې په ګزمه او پوستو بریدونه شوي

د کونړ ولایت د سرکانړو ولسوالۍ مرکز ته نژدې د دښمن په ګزمه برید وشو چې ۱ عسکر پکې ژوبل شو، همدارنګه په مسلم اباد او بارآباد سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې عسکرو ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

## ماښوګي کې پوسته تر برید لاندې راغله

د کونړ ولایت د ماښوګي ولسوالۍ په بارکنډي سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

## خاص کونړ کې پوسته تر برید لاندې راغله

د کونړ ولایت د خاص کونړ ولسوالۍ په دولي سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو، د برید له امله ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۲ عسکر ټپیان شول. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## ناړۍ کې په ګزمه بریدو شو

د کونړ ولایت د ناړۍ په کاګل سیمه کې د دښمن په ګزمه برید وشو چې عسکرو ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## ماښوګي کې پوسته تر برید لاندې راغله

د کونړ ولایت د ماښوګي ولسوالۍ په کنډګل سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو، د برید له امله ودانۍ ته زیان واوښت او د مرګ ژوبلې په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## مروري ولسوالۍ ودانۍ په هاوان وویشتل شو

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ ودانۍ په هاوان وویشتل شوه، د برید له امله د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې په ۴ پوستو بریدونه شوي

د کونړ ولایت د سرکانړو ولسوالۍ په ناوې سیمه کې د دښمن په ۴ پوستو بریدونه ترسره شول، په برید کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله کره شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## ماښوګي کې په پوسته برید، ۱ عسکر وژل شوی

د کونړ ولایت د ماښوګي ولسوالۍ په شیتنا سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شو او ودانۍ هم پوره زیانمنه شوه. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانړو کې په ګزمه بریدو شو

د کونړ ولایت دسرکانړو ولسوالۍ په قلاسر سیمه کې په ګزمه برید برید وشو، په برید کې د اوښتي زیان په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

## اسمار کې پوسته تر برید لاندې راغله

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په ډمبرو سیمه کې په پوسته برید ترسره شو، په برید کې د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۶-۰۶-۲۰۱۵

## مانوګي ولسوالۍ په ودانۍ او ۴ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید وشو چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. په عیني وخت کې په کنډګل سیمه کې د دښمن په ۴ پوستو هم بریدونه ترسره شول او په ترڅ کې یې دښمن ته مالي او ځاني تلفات واوښتل. ۲۶-۰۶-۲۰۱۵

## مانوګي کې په بیس برید وشو

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په خاري سیمه کې د دښمن په بیس برید ترسره شو چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. ۲۶-۰۶-۲۰۱۵

## اسمار کې په ۴ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت په اسمار ولسوالۍ کې د شال، شابل، سنګر او شال ډیپې په پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې د اوښتو تلفاتو په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## اسمار کې په ۱ کمالاتي موټرو برید وشو

د کونړ ولایت د اسمار ولسوالۍ په پلوخو سیمه کې د دښمن په اکمالاتي موټرو برید ترسره شو چې په مهال یې ۱ رینجر موټر تخریب شو. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## مانوګي کې په بیس برید وشو

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ اړونده سیمه کې د خاري په بیس وسلوال برید وشو چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## مروره کې عسکرو په عامو خلکو لارې تړلې

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ په اوسپدونکو دګوډاګۍ اردو عسکرو وروسته له هغه لارې بندي کړې چې یو شمېر سیمې ترې مجاهدینو فتحه کړې، د سیمې خلک وایي اوس د خوراکي موادو راوړلو لپاره له قاچاقي لارو کار اخلي او له سختو مشکلاتو سره مخ دي. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانو کې چاودنو ۴ عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ د ماشم اربکي د پوستې په رینجر موټر چاودنه وشوه چې له امله یې رینجر موټر تخریب او ۲ عسکر ژوبل شول، دغه راز په ناوې سیمه کې د ماین چاودنې ۲ تنه عسکر ځای په ځای ووژل. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## چپه دره کې په بیس او ۲ پوستو برید، ۶ عسکر ووژل شو

د کونړ ولایت په چپه دره ولسوالۍ کې د مزدوري اردو په بیس او د برچې کانې او ترنیک په پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ۶ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ او ودانیو ته هم پوره زیانونه واوښتل. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## مانوګي کې په ۲۰ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ له مرکز نه تر مناګي سیمې پورې د دښمن په ۲۰ پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانو کې په ۳ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت په سرکانو ولسوالۍ کې د خنجر په پوسته د یرقانې او د ماشم اربکي په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

## وټه پور کې عسکر په دراز کوف قتل شو

د کونړ ولایت دوټه پور ولسوالۍ د مناګي په بیس کې ۱ عسکر په درازکوف وویشتل شو چې ځای په ځای قتل شو. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

## مروره کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ په کاړکنډو سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شو او بل ټپي شو. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانو کې په ګزمه برید وشو

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ مرکز ته نژدې د مزدوري اردو په عسکرو برید ترسره شو چې عسکرو ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانو کې په ۴ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ناوې سیمه کې د دښمن په ۴ پوستو بریدونه ترسره شول چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. ۲۹-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانو کې ماینونو ټانک تخریب او ۵ عسکر ووژل

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په مانوکنډو سیمه کې په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۴ تنه عسکر ووژل شول، دغه راز په یاده سیمه کې د دښمن ماین پاک ټانګ هم په ماین والوزول شو چې پوره تخریب شو او ۱ عسکر پکې ووژل شو. ۲۹-۰۶-۲۰۱۵

## مانوګي کې په ګزمه برید وشو

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په لیچلام سیمه کې د دښمن په ګزمه برید ترسره شو، د برید له امله د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۹-۰۶-۲۰۱۵

## سرکانو کې په ۴ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په ناوې سیمه کې د دښمن په ۴ پوستو بریدونه ترسره شول، په برید کې د اوښتو تلفاتو په اړه دقیق معلومات نشته. ۳۰-۰۶-۲۰۱۵

## کونړ مرکز ته نژدې په پوسته برید وشو

د کونړ ولایت مرکز اسعداباد ته نژدې په توکي سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې په ترڅ کې یې عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۳۰-۰۶-۲۰۱۵

### سرکانو کې په ۲ پوستو بریدونه وشول

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ په اړونده سیمه کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول چې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۳۰-۰۶-۲۰۱۵

## لغمان

### قرغیو کې د جاسوسي اداري ۳ کارمندان ووژل شول

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په سرخکانو سیمه کې د استخباراتي اداري په لندکروزر موټر برید وشو چې ۳ تنه کارمندان پکې ووژل شول، وروسته سیمې ته عسکر او چورلکې راغلې او مجاهدین یې محاصره کړل، له درنې نښتې وروسته عسکرو ته درنه مرګ ژوبله واوښته او مجاهدین له محاصرې روغ رمټ ووتل. ۰۱-۰۶-۲۰۱۵

### لغمان مرکز ته نږدې پوسته تر برید لاندې راغله

د لغمان ولایت په مرکزي سیمه بسرام کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې ۱ عسکر پکې ټپي شو. ۰۱-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې ۳ عسکر وژوند له لاسه ورکړ

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په سرخکانو سیمه کې د مزدوري اردو په ګزمه برید ترسره شو، د برید په مهال ۳ تنه عسکر ووژل شول او ۴ نور عسکر ټپیان شول. ۰۱-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې په کاروان برید، ۲ کانټینر ویجاړ شول

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په کلمې سیمه کې د دښمن په اکمالاتي کاروان برید ترسره شو، د برید په مهال ۲ کانټینر په بشپړه توګه ویجاړ او ۲ نور زیانمن شول، په دې سربېره ۱ موټروان او کلینر هم ووژل شول. ۰۲-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې په پوسته بریدوشو

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په باړوکښ سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې په ترڅ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل، د دښمن په متقابلو ډزو کې ۱ مجاهد ټپي شو. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

### بادپخ کې ۲ اربکیان قتل او وسله یې غنیمت شوه

د لغمان ولایت د بادپخ ولسوالۍ په کافرګلي سیمه کې ۲ تنه اربکیان ووژل شول او موټر سایکل یې وسوزول شو، مجاهدینو د اربکیانو ۲ کلاشنکوفونه له تجهیزاتو سره غنیمت کړل. ۰۴-۰۶-۲۰۱۵

### د لغمان مرکز ته نږدې ۲ عسکر ووژل شول

د لغمان ولایت مهترلام ته نږدې په باباصاحب ډاګ سیمه کې په مزدوري اردو برید ترسره شو، په برید کې ۲ عسکر قتل او ۳ ژوبل شول، په دې سربېره ۱ رینجر موټر هم تخریب شو. ۰۴-۰۶-۲۰۱۵

### لغمان مرکز ته نږدې ۲ اربکیان ووژل شول

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نږدې په اکین اباد سیمه کې په اربکیانو برید ترسره شو، د برید په مهال ۲ اربکیان قتل او بل سخت ژوبل شو او مجاهدینو ۱ میل کلاشنکوف غنیمت کړ. ۰۸-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې بیس په میزایلو وویشتل شو

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په سپینه تانه سیمه کې د دښمن په بیس ۳ میزایل وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۰۸-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې په پوسته او کاروان برید، ۳ پولیس ووژل شول

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په استحکام پله سیمه کې د دښمن په پوسته او کاروان بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ۱ ټانګ، ۱ کانټینر موټر تخریب او ۳ تنه پولیس ووژل شول. ۰۹-۰۶-۲۰۱۵

### علیشنګ کې په کاروان برید، ۱ عسکر ووژل شو

د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په جبون ډاګ سیمه کې د دښمن په کاروان برید وشو چې په مهال یې ۱ عسکر قتل او ۳ نور ژوبل شول. ۰۹-۰۶-۲۰۱۵

### لغمان مرکز ته څېرمه قومندان ټپي او ۳ عسکر ووژل شول

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نږدې په بدیع اباد سیمه کې د کمپاین په مزدورو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۳ تنه عسکر ووژل شول او د قومندان احمد ضیاء په شمول ۳ نور مرګوني ټپیان شول، له دې علاوه ۱ زغروال ټانګ هم تخریب شو. ۰۹-۰۶-۲۰۱۵

### بادپخ کې اربکي مجاهدینو سره یو ځای شو

د لغمان ولایت په بادپخ ولسوالۍ کې یو اربکي چې د ګروچ سیمې له پوستې نه تښتېدلی و له مجاهدینو سره یو ځای شو. ۱۰-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې په بیس برید، ۱۰ پولیس ووژل شول

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په سپینه تانه سیمه کې د دښمن په لوی بیس وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۱۰ پولیسو خپل ژوند له لاسه ورکړ او د بیس ودانۍ ته هم پوره زیان واوښت. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې ۲ پولیسو ژوند له لاسه ورکړ

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په استحکام پله سیمه کې د پولیسو په ګزمه برید وشو، د برید په مهال ۲ تنه پولیس قتل او ۳ نور ژوبل شول، په دې سربېره ۱ رینجر موټر هم تخریب شو. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

### قرغیو کې ۱۲ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په چینو سیمه کې د دښمن په گزمه وسلوال برید ترسره شو، د برید په ترخ کې د دښمن ۱۲ عسکر ووژل شول، گڼ نور ټپیان شول او په دې سربېره ۳ ټانگونه او ۱ رینجر موټر پوره تخریب شول. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

**قرغیو کې په پوسته برید، ۱۲ پولیس ووژل شول**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په کفترخانه سیمه کې د پولیسو په پوسته برید وشو، د برید په مهال ۲ تنه پولیس قتل او ۵ نور ټپیان شول. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

**قرغیو کې پوسته تر برید لاندې راغله**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په وریښمین تنگي سیمه کې د دښمن پوسته د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، د برید له امله د اوښتي زیان په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۴-۰۶-۲۰۱۵

**بادپیخ کې په کاروان برید، ۲ عسکر ووژل شول**

د لغمان ولایت د بادپیخ ولسوالۍ په محمود کلا او کوز کلا سیمو کې د دښمن په کاروان برید وشو چې په مهال یې ۲ عسکر قتل او ۳ نور ټپیان شول. ۱۵-۰۶-۲۰۱۵

**بادپیخ کې ۱ رینجر تخریب او ۳ عسکر ووژل شول**

د لغمان ولایت د بادپیخ ولسوالۍ په امبیحی سیمه کې د دښمن په کاروان برید ترسره شو. په برید کې ۱ رینجر تخریب شو او په دې سربېره ۳ عسکر قتل او ۵ نور ټپیان شول. ۱۵-۰۶-۲۰۱۵

**قرغیو کې ۳ ټانگونه، ۸ موټر ویجاړ او ۲۰ عسکر ووژل شول**

د لغمان ولایت په قرغیو ولسوالۍ له استحکام پله نیولې بیا تر کلیمي پوستې پورې د دښمن په اکمالاتي او پوځي کاروان څلور ځایه کمیني بریدونه ترسره شول، د اوږدمهالې جگړې په ترخ کې د دښمن ۱۴ تنه مزدورو عسکرو او ۶ پولیس ووژل شول، له دې علاوه ۳ زغروال ټانگونه، ۴ اکمالاتي کانتینر، ۲ د تیلو ټانکر او ۲ رینجر موټر وویشتل شول او په بشپړه توگه وسوځېدل. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

**قرغیو کې په بیس د توغندیو برید، ۳ عسکر ووژل شول**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په گمبیري ډاگ سیمه کې د دښمن په بیس توغندي وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولگېدل، د برید له امله ۳ عسکر قتل او ۲ نور ټپیان شول، په دې سربېره ۱ چورلکه هم زیانمنه شوه. ۱۹-۰۶-۲۰۱۵

**بادپیخ کې په رینجر چاودنې ۲ عسکر ووژل**

د لغمان ولایت د بادپیخ ولسوالۍ په توده چینه سیمه کې د گوډاگیو عسکرو په رینجر موټر چاودنه وشوه، د چاودنې له امله رینجر تخریب شو او پکې ناست عسکر ۲ تنه قتل او ۲ نور ټپیان شول. ۱۹-۰۶-۲۰۱۵

**علیشنگ کې اربکی قومندان ټپي شو**

د لغمان ولایت د علیشنگ ولسوالۍ په ترنگ سیمه کې په اربکیانو برید وشو چې په مهال یې اربکی قوماندان زبیر مرگوني ټپي شو. ۱۹-۰۶-۲۰۱۵

**لغمان مرکز ته نژدې ماین د ۲ اربکیانو ژوند واخیست**

د لغمان ولایت مرکز مهترلام ته نژدې په اکین اباد سیمه کې په اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ اربکیان ووژل شول، وروسته اربکیانو په سیمه کې ناتار دزې وکړې چې له امله یې ۲ ښځې ټپیانې شوې. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

**لغمان کې په کاروان برید وشو**

د لغمان ولایت د مرکز مهترلام اړوند په بسرام سیمه کې د دښمن په اکمالاتي کاروان برید وشو. په برید کې ۱۱ اکمالاتي موټر تخریب شو او ۱ عسکر ټپي شو. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

**لغمان مرکز ته نژدې په پوسته برید وشو**

د لغمان ولایت د مرکز مهترلام اړوند په اکین اباد سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې ۲ عسکر پکې ټپیان شول. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

**علیشنگ کې په عسکرو برید وشو**

د لغمان ولایت د علیشنگ ولسوالۍ په شمسخېلو سیمه کې په گوډاگیو عسکرو برید وشو چې په مهال یې ۱ عسکر ټپي شو. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

**علینگار کې اربکی ووژل شو**

د لغمان ولایت د علینگار ولسوالۍ په کوخي سیمه کې مجاهدینو تالاشي کوله چې یو اربکی له یو موټر نه وتښتید او د مجاهدینو لخوا په ډزو ووژل شو. ۲۶-۰۶-۲۰۱۵

**علیشنگ کې ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د لغمان ولایت د علیشنگ ولسوالۍ په ترنگ سیمه کې په عسکرو چاودنه وشوه او له امله یې ۲ تنه عسکر ځای په ځای ووژل شول. ۲۶-۰۶-۲۰۱۵

**قرغیو کې ماین اربکی وژلی**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په چارباغ سیمه کې په اربکیانو چاودنه وشوه، د چاودنې له امله ۱ اربکی ټوټه ټوټه شو او گڼ نور ټپیان شول. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

**قرغیو کې عسکر په دراز گوف قتل شو**

د لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ د مشالي په نوم پوسته کې ۱ مزدور عسکر وویشتل شو چې ځای په ځای قتل شو. ۲۷-۰۶-۲۰۱۵

## نورستان

**واما کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د نورستان ولایت د واما ولسوالۍ په څپریگل سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې په ترخ کې یې ۱ پولیس قتل او ۵ نور ټپیان شول. ۰۱-۰۶-۲۰۱۵

**وانت وایگل کې امنیتي عسکرو قومي مشر په شهادت ورساوه**

د نورستان ولایت د وانت وایګل ولسوالی په بیله سیمه کې په اصطلاح د ملي امنیت عسکرو قومي سپینږیري حاجي عبدالبصیر وروسته له هغه شهید کړچې د یادې ولسوالی څنو قومي مشرانو د اسلامي امارت د بشپړ ملاتړ اعلان کړی وو. ۲۰۱۵-۰۶-۰۵

### کامدیش کې ۲ ګوډاګي عسکر ووژل شول

د نورستان ولایت د کامدیش ولسوالی په کشتوز سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو برید وشو چې په مهال یې ۲ عسکر ووژل شول او بل ژوبل شو. ۲۰۱۵-۰۶-۰۸

### کامدیش کې ماین ګوډاګی عسکر وواژه

د نورستان ولایت د کامدیش ولسوالی په بنوزو سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په ګزمه چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ اربکی ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵-۰۶-۱۴

### وانت ویګل ولسوالی او ۱۶ پوستې فتحه، ۱۷ عسکر قتل، ۹ ټانګونه او ۱۵ موټر غنیمت شول

د نورستان ولایت دوانت وایګل ولسوالی مرکز، امنیه قومندانی، مهمه نظامي قرارګاه (بیس) د ولسوالی په شاوخوا کې ۱۶ امنیتي پوستې د اړدی خونړی نښتې په ترڅ کې فتحه او د دښمن عسکر د درنو تلفاتو په لیدلو سره وتښتېدل، په جګړه کې ۱۷ تنه عسکر او پولیس ووژل شول، ګڼ شمیر ټپیان شول، ۹ ټانکونه ۸ عرادې رینجر، ۲ ډاټسن او ۵ عرادې سراچه موټر، لسګونه میله سپکه او درنه وسله، ګڼ شمیر مهمات او نظامي توکي له دښمن څخه په غنیمت ونیول شول، په جګړه کې ۷ تنه مجاهدین شهیدان او ۳ نور ټپیان شول. ۲۰۱۵-۰۶-۲۶

### کامدیش کې ماین ۱ اربکی وواژه

د نورستان ولایت د کامدیش ولسوالی په کامدیش لر کلي کې په اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ اربکی ووژل شو. ۲۰۱۵-۰۶-۲۹

## غازی آباد

### غازي اباد کې ۱ موټر ویجاړ او ۲ استخباراتي کارکونکي ووژل شول

د غازي اباد ولسوالی په سونک سیمه کې د مزدوري اردو په عسکرو او د جاسوسي اداري په کارمندانو وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال په یادو عسکرو چاودنه هم وشوه. په چاودنه او برید کې ۲ د جاسوسي اداري کارمندان ووژل شول. ۲۰۱۵-۰۶-۰۱

### غازي اباد کې پوسته تر برید لاندې راغله

د غازي اباد ولسوالی په نیشه ګام سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو، په برید کې د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۰۱۵-۰۶-۰۲

### غازي اباد کې په کتار برید، ۱ عسکر ووژل شو

د غازي اباد ولسوالی په سونک سیمه کې د دښمن په کتار برید ترسره شو، د برید په ترڅ کې ۱ عسکر ووژل شو او یو شمېر موټر تخریب شول. ۲۰۱۵-۰۶-۰۲

### غازي اباد کې په پوسته برید ترسره شو

د غازي اباد ولسوالی د نیشه ګام بازار ته نژدې د مزدوري اردو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ټپي شو او ودانی هم زیانمنه شوه. ۲۰۱۵-۰۶-۰۴

### غازي اباد کې په پوسته بریدو شو

د غازي اباد ولسوالی په ګنه ګاره سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې په مهال یې دښمن ته مرګ ژوبله او مالي زیان واوښت. ۲۰۱۵-۰۶-۰۴

### غازي اباد کې ماین اربکی قومندان او ۳ اربکیان ټپیان کړل

د غازي اباد ولسوالی په نیشه ګام سیمه کې په هغو اربکیانو چاودنه وشوه چې د عامو خلکو د زورولو په موخه پلي راوتلي وو، چاودنې اربکی قومندان او ۳ تنه اربکیان مرګوني ټپیان کړل. ۲۰۱۵-۰۶-۰۷

### غازي اباد کې په بیس او دفاعي پوسته بریدونه وشول

د غازي اباد ولسوالی په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس او دفاعي پوسته بریدونه ترسره کړل. په بریدونو کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله او مالي تلفات واوښتل. ۲۰۱۵-۰۶-۰۸

### غازي اباد کې د دښمن اکمالاتي موټر ویجاړ شو

د غازي اباد ولسوالی په سپینه ګټه سیمه کې د اربکیانو په هغه موټر برید ترسره شو چې پوستې ته یې پکې اکمالات کول، په برید کې موټر په بشپړه توګه ویجاړ شو او ۱ اربکی ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۶-۰۹

### غازي اباد ولسوالی په ودانی بریدو شو

د غازي اباد ولسوالی په ودانی وسلوال برید ترسره شو. د برید له امله ۳ پولیس ټپیان شول او ودانی هم زیانمنه شوه. ۲۰۱۵-۰۶-۱۰

### غازي اباد کې په پوسته بریدو شو

د غازي اباد ولسوالی په نیشه ګام سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو چې ۱ عسکر پکې ټپي شو او ودانی هم زیانمنه شوه. ۲۰۱۵-۰۶-۱۳

### غازي اباد کې په پوسته بریدو شو

د غازي اباد ولسوالی په زیارت سیمه کې د دښمن په پوسته او پوستې ته نژدې د دښمن په کاروان برید ترسره شو، په بریدونو کې د پوستې ودانی ته په زیان اوښتو سربېره ۱ ټانک تخریب شو او ۱ عسکر ټپي شو. ۲۰۱۵-۰۶-۱۴

### غازي اباد کې په بیس برید ترسره شو

د غازي اباد ولسوالی په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله دقیق معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵-۰۶-۱۵

### غازي اباد کې په بیس برید، ۱ عسکر ووژل شو

د غازي اباد ولسوالۍ په سونک سیمه کې د دښمن په بیس برید ترسره شو، په برید کې ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۱ عسکر ووژل شو. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې په پوسته برید، ۱ عسکر ووژل شو

د غازي اباد ولسوالۍ په نیشه ګام سیمه کې د شیګړي په پوسته وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شو او ودانۍ هم زیانمنه شوې ده. ۲۰-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې په ګزمه برید وشو

د غازي اباد ولسوالۍ د سونک په سپینه ګټه سیمه کې د دښمن په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې په بیس برید، ۳ عسکر ووژل شول

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکر ووژل شول او ۲ نور ټپیان شول، په دې سربېره ودانۍ ته هم زیان واوښت. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې عسکر په دراز کوف قتل شو

د غازي اباد ولسوالۍ په سونک سیمه کې د شل غشي په پوسته کې یو عسکر په دراز کوف وویشتل شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې په بیس برید، ۲ پوځي موټر تخریب شوي

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۲ پوځي موټر تخریب شول او د اوښتي مرګ ژوبلې شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۶-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې ۱ موټر ویجاړ او ۶ عسکر ووژل شو

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د دښمن په پوځي کاروان وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۶ عسکر و خپل ژوند له لاسه ورکړ او په دې سربېره ۱ پوځي موټر په بشپړه توګه ویجاړ شو، وروسته عسکرو په سیمه کې په یو رعیتي موټر ډزې وکړې چې له امله یې ۲ سړي، ۱ ښځه شهیدان او ۳ ماشومان ټپیان شول. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

### غازي اباد کې پوسته تر برید لاندې راغله

د غازي اباد ولسوالۍ په شش سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته مرګ ژوبله او مالي تلفات واوښتل. ۳۰-۰۶-۲۰۱۵

## کاپیسا

### نجراب کې ماین اربکي قومندان ټپي کړ

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې په اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې اربکي قومندان حمید مرګوني ټپي شو. ۰۱-۰۶-۲۰۱۵

### کوه بند ولسوالۍ په ودانۍ برید وشو

د کاپیسا ولایت د کوه بند ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۰۲-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ. ۰۲-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې په پوسته برید، ۲ عسکر ووژل شول

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته د هشتاددو برید وشو او له امله یې ۲ عسکر قتل او اټپي شو. ۰۲-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې پوسته فتحه او ۳ عسکر ووژل شول

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې د دښمن پوسته تر برید لاندې راغله او په پای کې یې پوسته فتحه شوه، په پوسته کې ۳ عسکر ووژل شول او بل ټپي شو. په ښښته کې یو مجاهد د شهادت لوړ مقام ته ورسېد. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې په عسکرو برید وشو

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ د پچغان په ابراهیم خېلو سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې د اوښتي مرګ ژوبلې په اړه شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې د دښمن تعرضي برید په شاوتمبول شو

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې د دښمن پراخ تعرضي برید په شاوتمبول شو، د جګړې په ترځ کې دښمن ته درانه تلفات واوښتل او د تلفاتو په کاللو له سیمې بیرته وتښتېدل. ۰۴-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې ۱۱ اربکي ووژل شو

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ د پچغان په آب برده سیمه کې په اربکیانو برید وشو چې ۱۱ اربکي پکې ووژل شو. ۰۴-۰۶-۲۰۱۵

### کوه بند کې ۱ رینجر ویجاړ او ۲ عسکر قتل شول

د کاپیسا ولایت د کوه بند ولسوالۍ په بولغین سیمه کې د جاسوسي شبکې په موټر وسلوال برید ترسره شو، دبرید په مهال ۲ عسکر ووژل شول او موټر په بشپړه توګه وسوځول شو. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې اربکي قومندان مجاهدینو سره یو ځای شو

د کاپیسا ولایت په نجراب ولسوالۍ کې اربکي قومندان مالک نظامي د جلب او جذب کمیسیون او سیمه ییزو مجاهدینو د هڅو په برکت له ګوډاګي اداري را جلا او له مجاهدینو سره یو ځای شو. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

### نجراب کې ۱۱ اربکي قتل او وسله یې غنیمت شوه

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې په اربکیانو برید ترسره شو. په برید کې ۱ اربکی ووژل شو او بل ټپي شو، د ووژل شول اربکي وسله مجاهدینو غنیمت کړه. ۱۰-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې تعرضي برید په شا وتمبول شو**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې د دښمن عسکرو په مجاهدینو تعرضي برید وکړ چې له سخت مقاومت سره مخ شول او په پای کې د تلفاتو په ګاللو له سیمې وتښتېدل. ۱۰-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۱ ټانک ویجاړ او ۳ عسکر ووژل شول**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې د دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکر ووژل شول او ۱ زغروال ټانک په مکمل ډول له منځه لاړ، په عیني حال کې په سیمه کې د دښمن په پوسته د هشتاددو برید وشو چې له امله یې پوستې اور واخیست او په بشپړه توګه وسوځېدله. ۱۰-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۲ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ د افغانیه په کربوړو سیمه کې د مزدوري اردو په ګزمه برید وشو چې ۲ عسکر پکې ووژل شول. ۱۱-۰۶-۲۰۱۵

**مجاهدینو د کاپیسا په نجراب کې پراخه سیمه فتحه کړه**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ اړوند د پچغان په نوم دره له تیرو ۹ ورځو راپه دې خوا د اسلامي امارت د مجاهدینو د پرله پسې بریدونو په نتیجه کې په بشپړه توګه د دښمن له حضوره پاکه شوه. ۱۱-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۲ اربکیان قتل او وسلې یې غنیمت شوې**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په غوث دره کې د ملاغش په سیمه کې د چریکي برید په مهال ۲ تنه اربکیان ووژل شول او وسلې یې مجاهدینو غنیمت کړې. ۱۳-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۱ ټانک تخریب او ۴ عسکر ووژل شول**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه حاجیانو کلي کې د ګډ دښمن عسکرو په مجاهدینو تعرضي برید وکړ او له سخت مقاومت سره مخ شول، په نښته کې ۴ عسکر ووژل شول، ۳ نور ټپیان شول او په دې سربېره ۱ زغروال ټانک تخریب شو او نور عسکر د تلفاتو په لیدلو سره بېرته له سیمې وتښتېدل. ۱۵-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۳ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه اخندزاده ګانو سیمه کې د دښمن له عسکرو سره د تښتې په مهال ۳ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ، وروسته عسکرو په سیمه کې د هاوانونو ډزې وکړې چې له امله یې ۲ کلیوال شهیدان او ۱ ژوبل شو. ۱۵-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۴ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې د ګډ دښمن عسکرو څو ځله په مجاهدینو تعرضي بریدونه وکړل چې له سخت مقاومت سره مخ شول او په شا وتمبول شول. په نښته کې ۴ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړی او ۳ نور ټپیان شول، په جګړه کې ۲ مجاهدین هم ټپیان شول. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې د مزدوري اردو قومندان او ۲ عسکر ووژل شول**

د کاپیسا ولایت په نجراب ولسوالۍ کې له هغو عسکرو سره نښته شوه چې غوښتل یې د پچغان سیمه بیرته لاس ته راوړي، په نښته کې د مزدوري اردو قومندان ( نادر ) او ۲ تنه عسکر ووژل شول او ۳ نور عسکر ټپیان شول، مجاهدینو د وژل شویو عسکرو وسلې غنیمت کړې. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

**کاپیسا ولایت مقام ته نږدې ماین ۲ پولیس ووژل**

د کاپیسا ولایت مقام ته څېرمه په کوره تاج سیمه کې په پولیسو چاودنه وشوه. د چاودنې له امله ۲ تنه پولیس ځای په ځای قتل او بل ټپي شو. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۱ ټانک او ۳ عسکر له منځه لاړل**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې د دښمن په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ او ۶ نور مرګوني ټپیان شول، په دې سربېره ۱ ټانک هم تخریب شو. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې په ټانک چاودنې ۲ عسکر ووژل**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په یاسین زیي سیمه کې د مزدوري اردو په ټانک چاودنه وشوه، په چاودنه کې د ټانک په تخریبېدو سربېره ۲ عسکر قتل او ۳ نور ټپیان شول. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې له ګډ دښمن سره نښته کې ۷ عسکر ووژل شول**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه نظام خېلو او جر کلیو کې د ګډ دښمن له عسکرو سره نښته وشوه، په نښته کې ۷ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ او ۸ نور ټپیان شول، په دې سربېره ۲ زغروال ټانکونه تخریب شول. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۲ عسکر ووژل شول**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې د دښمن تعرضي بریدونه په شا وتمبول شول، په نښتو کې د دښمن ۲ عسکر قتل او د اربکیانو د دوو سرګروپانو فضل او بصیر په شمول ګڼ نور ټپیان شول. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې ۱۰ عسکر قتل او ۶ ټانکونه وسوزول شول**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه جر سیمه کې د دښمن په ګزمه له ځانګړي تکتیک نه په کار اخیستلو وسلوال برید ترسره شو، په برید کې د دښمن

۱۰ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ او په دې سربېره یې ۶ زغروال ټانکونه په بشپړه توګه وسوزېدل. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې د دښمن عملیات له ناکامۍ سره مخ شول**

د کاپیسا ولایت په نجراب ولسوالۍ کې د دښمن هغه عملیات له ناکامۍ سره مخ شول چې ځوړ ځي ورېدي یې په افغانیه سیمه کې پیل کړي وو، عملیاتو په مهال د ښمن ته درانه مالي او ځاني زیانونه واوښتل او په پای کې د شپې له تیارې نه په استفاده له سیمې وتښتېدل. ۱۸-۰۶-۲۰۱۵

**کوه بند کې په پوسته برید، ۲ پولیس ووژل شول**

د کاپیسا ولایت د کوه بند ولسوالۍ په دفاعي پوسته وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله وداني ته په زیان اوښتو سربېره ۱ رینجر موټر تخریب شو او ۳ پولیس ووژل شول . ۱۸-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب کې اربکی مجاهدینو سره یو ځای شو**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې یو اربکی د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې له ګوډاګي اداري راجلا شو، نوموړي خپله وسله هم مجاهدینو ته تسلیم کړه. ۲۱-۰۶-۲۰۱۵

**نجراب ولسوالۍ په ودانۍ بریدونه**

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو، په برید کې د اوښتي زیان په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۳۰-۰۶-۲۰۱۵

## پروان

**سیاه ګرد کې پراخه سیمه فتحه او ۳ عسکر ووژل شول**

د پروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په قول خول دره او جوی دختر سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه پیل وشول او په پای کې یې خول دره سیمه په بشپړه توګه فتحه شوه، په جګړه کې ۳ تنه ګوډاګي عسکر ووژل شول . ۰۱-۰۶-۲۰۱۵

**شیخ علي کې د بامیان ولایت د امنیه قومندان په موټرو برید، ۴ عسکر ووژل شول**

د پروان ولایت د شیخ علي ولسوالۍ مرکز ته نژدې د بامیان ولایت د امنیه قومندان په موټرو برید ترسره شو. په برید کې ۴ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ، ګڼ نور ټپیان شول او ۲ رینجر موټر تخریب شول، مجاهدینو د ووژل شوو عسکرو ۴ کلاشنکوفونه غنیمت کړل. ۰۲-۰۶-۲۰۱۵

**سیاه ګرد کې له دښمن سره نښته وشوه**

د پروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په سورخي سیمه کې د دښمن له عسکرو سره نښته ترسره شوه، په نښته کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو کره شمېره یې نه ده څرګنده شوې، په نښته کې ۲ مجاهدین د شهادت لوړ مقام ته ورسېدل. ۰۲-۰۶-۲۰۱۵

**کوه صافي کې په ګزمه برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ په ډګري سیمه کې د مزدوري اردو په ګزمه برید وشو چې په مهال یې ۱ عسکر ووژل شو. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

**بګرام کې چاودنې ټانګ ویجاړ او ۴ امریکایي عسکر ووژل**

د پروان ولایت د بګرام ولسوالۍ په ماهیګیرو سیمه کې د امریکایي عسکرو زغروال ټانګ په ماین والوزول شو. په چاودنه کې ټانګ له منځه لاړ او پکې ناست ۴ تنه امریکایي عسکر ځای په ځای ووژل شول. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

**کوه صافي کې ۳ رینجر، ۲ ټانګونه او ۱ کماز موټر تخریب شول**

د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ په ډګري سیمه کې د مزدوري اردو په قوه برید ترسره شو، د برید په مهال ۳ رینجر، ۲ ټانګونه او ۱ کماز موټر وویشتل شول چې پوره تخریب شول او په دې سربېره ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

**پروان مرکز ته نژدې د تیلو ټانکر د ماین خوراک شو**

د پروان ولایت مرکز ته نژدې په جنګل باغ سیمه کې د اکمالاتي کاروان ټانکر موټر په چسپکي ماین والوزول شو، د چاودنې له امله ټانکر اور واخیست او په بشپړه توګه وسوزېد. ۰۳-۰۶-۲۰۱۵

**شینوارو کې ۱ ټانګ تخریب او ۴ عسکر ووژل شول**

د پروان ولایت د شینوارو ولسوالۍ په د استامي او اشترشهر درو کې د دښمن په هغه قوه برید وشو چې غوښتل یې سیاه ګرد ولسوالۍ ته لاړه شي، د برید په مهال ۴ عسکر ووژل شول او ۱ زغروال ټانګ تخریب شو. ۰۴-۰۶-۲۰۱۵

**سیاه ګرد کې د مزدوري اردو د هاوان برید کې ۳ ماشومان شهیدان شول**

د پروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په رحیم خېلو سیمه کې د مزدوري اردو عسکرو د واده په مراسمو د هاوان برید وکړ. په برید کې ۳ ماشومان شهیدان شول او ۵ تنه ټپیان شول. ۰۵-۰۶-۲۰۱۵

**شینوارو کې له دښمن سره نښته وشوه**

د پروان ولایت د شینوارو ولسوالۍ په اشترشهر سیمه کې د دښمن له عسکرو سره نښته ترسره شوه. په نښته کې دښمن ته تلفات واوښتل خو په اړه یې دقیق معلومات نشته. ۰۵-۰۶-۲۰۱۵

**پروان مرکز ته نژدې د تیلو ټانکر د ماین خوراک شو**

د پروان ولایت مرکز ته نژدې په چیکل سیمه کې د اکمالاتي کاروان د تیلو ټانکر په چسپکي ماین والوزول شو، د چاودنې له امله ټانکر اور واخیست او په بشپړه توګه وسوزېد. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

**شینوارو کې ۱ رینجر تخریب او ۲ پولیس قتل شول**

د پروان ولایت د شینوارو ولسوالی په رازکرد سیمه کې د دښمن په گزمه برید ترسره شو، دبرید په مهال ۲ پولیس قتل او ۱ رینجر موټر تخریب شو. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه گرد کې په عسکرو بریدو شو

د پروان ولایت د سیاه گرد ولسوالی په مرکزي سیمه کې په مزدوري اردو برید وشو. د برید په مهال ۱ رینجر موټر تخریب شو او د مرگ ژوبلې کره شمېره نه ده څرگنده شوې. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

### بگرام کې پراخه سیمه له اربکیانو پاکه شوه

د پروان ولایت په بگرام ولسوالی کې مجاهدینو د نزدري په نامه سیمه په بشپړه توگه له اربکیانو پاکه کړه. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

### بگرام کې د تیلو ټانکر د ماین خوراک شو

د پروان ولایت په بگرام ولسوالی کې د اکمالاتي کاروان د تیلو ټانکر د چاودنې ښکار شو چې اور یې واخیست او په بشپړه توگه وسوزېد. ۰۷-۰۶-۲۰۱۵

### د بگرام هوايي اډه په میزایلو وویشتل شوه

د پروان ولایت د بگرام په هوايي اډه میزایل وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولگېدل. د برید له امله دښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه دقیق معلومات نشته. ۰۸-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه گرد کې ۳ اربکیان قتل او ۱ بلډوزر یې تخریب شو

د پروان ولایت د سیاه گرد ولسوالی په سرخي سیمه کې په هغو اربکیانو برید وشو چې د پوستې جوړولو په موخه راغلي وو. د برید په مهال ۳ اربکیان قتل او ۱ ټپي شو، په دې سربېره یو بلډوزر هم تخریب شو. ۰۹-۰۶-۲۰۱۵

### د بگرام هوايي اډه په میزایلو وویشتل شوه

پروان ولایت کې د بگرام په هوايي اډه ۳ میزایل وتوغول شول چې په منځ کې یې ولگېدل، د برید له امله د اوښتي زیان په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۰۹-۰۶-۲۰۱۵

### د بگرام په هوايي اډه میزایل وار شول

د بگرام په هوايي اډه میزایل وتوغول شول چې په منځ کې یې د یرغلگرو په هستوگنځای ولگېدل. د برید له امله د اوښتي زیان په هکله تر اوسه پوره دقیق معلومات نشته. ۱۰-۰۶-۲۰۱۵

### پروان مرکز ته نژدې د تیلو ټانکر د ماین خوراک شو

د پروان ولایت مرکز ته نژدې د اکمالاتي کاروان د تیلو ټانکر په چسپکي ماین والوزول شو، په چاودنه کې ټانکر اور واخیست او په بشپړه توگه وسوزېد. ۱۳-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه گرد کې اربکی په دراز کوف قتل شو

د پروان ولایت د سیاه گرد ولسوالی په سرخي سیمه کې یو اربکی په دراز کوف وویشتل شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۱۳-۰۶-۲۰۱۵

### کوه صافي کې د مزدوري اردو ټانک په ماین والوت

د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالی په ډگري سیمه کې د مزدوري اردو په ټانک درنه چاودنه وشوه، د چاودنې له امله ټانک تخریب شو او عسکرو ته پکې د اوښتي مرگ ژوبلې شمېره نه ده څرگنده شوې. ۱۴-۰۶-۲۰۱۵

### کوه صافي کې ماین ټانک ویجاړ او ۲ عسکر ووژل

د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالی په صوفي خېلو سیمه کې د گډ دښمن د کاروان زغروال ټانک په ماین والوزول شو، د چاودنې له امله ټانک ویجاړ شو او پکې ناست عسکر ۲ تنه قتل او ۳ نور ټپیان شول. ۱۲-۰۶-۲۰۱۵

### سیدخېلو کې ۱ موټر تخریب او ۴ پولیس ووژل شول

د پروان ولایت د سیدخېلو ولسوالی په جله نوروز سیمه کې د پولیسو په گزمه برید وشو، د برید په مهال ۴ پولیس قتل او ۱ کرولا موټر تخریب شو. ۱۷-۰۶-۲۰۱۵

### جبل سراج کې دوزارت دفاع یو تن قومندان قتل شو

د پروان ولایت د جبل سراج ولسوالی بازار ته نژدې د دفاع وزارت په کارمندانو برید ترسره شو، په برید کې د وزارت دفاع یو تن قومندان ووژل شو، ۳ تنه ټپیان شول او هایلیکس موټر یې تخریب شو. ۲۰-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه گرد کې په رینجر چاودنې ۴ اربکیان ووژل

د پروان ولایت د سیاه گرد ولسوالی په سرخي سیمه کې د اربکیانو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر پوره تخریب، ۴ تنه اربکیان مړه او ۲ اربکیان ټپیان شول. ۲۱-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه گرد کې اربکی په دراز کوف قتل شو

د پروان ولایت د سیاه گرد ولسوالی په سرخي سیمه کې یو اربکی په دراز کوف وویشتل شو چې ځای په ځای قتل شو. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

### بگرام کې د تیلو ټانک د ماین خوراک شو

د بگرام ولایت د باریکاب سیمه کې د تیلو ټانکر د ماین خوراک شو، د چاودنې له امله ټانکر اور واخیست او په بشپړه توگه وسوزېد. ۲۲-۰۶-۲۰۱۵

### بگرام هوايي اډه په میزایلو وویشتل شوه

د پروان ولایت په بگرام ولسوالی کې د دښمن په لوی مرکز ۲ میزایل وتوغول شول چې په نښه شوي ځای ولگېدل او له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۴-۰۶-۲۰۱۵

### پروان مرکز ته نژدې ماین ۴ پولیس وژلي

د پروان ولایت مرکز ته نژدې په بایانو سیمه کې د پولیسو په رینجر موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر تخریب او ۴ تنه پولیس پکې ووژل شول. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

### بگرام کې د پولیسو رینجر په ماین والوت

د پروان ولایت د بګرام ولسوالۍ په نودي سیمه کې د پولیسو په رینجر موټر چاودنه وشوه چې له امله یې موټر تخریب شو او ۴ پولیسو ته پکې مرګ ژوبله واوښته. ۲۵-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه ګرد کې په پوسته برید، ۲ عسکر ووژل شو

د پروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په بالاقلعه سیمه کې په پوسته برید ترسره شو، دبرید په مهال ۲ تنه اربکیان قتل او ۲ نور ټپیان شول. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

### سیاه ګرد کې په رینجر چاودنې ۳ عسکر ووژل

د پروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په فندقستان سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو رینجر موټر په ماین والوزول شو، د چاودنې له امله د رینجر په تخریبېدو سربېره ۳ عسکر ووژل شول او ۲ نور ټپیان شول. ۲۸-۰۶-۲۰۱۵

### بګرام کې ماین ټانګ ویجاړ او ۴ امریکایي عسکر ووژل

د پروان ولایت د بګرام ولسوالۍ په حاجیانو سیمه کې د امریکایي اشغالګرو زغروال ټانګ په ماین والوزول شو، په چاودنه کې ټانګ ویجاړ او ۴ تنه عسکر ځای په ځای ووژل شول. ۲۹-۰۶-۲۰۱۵

## کندهار

### ارغنداب کې ماین ۲ګوډاګیان قتل یو ټپي کړ

دکندهارولایت دارغنداب ولسوالۍ اړوند د شاه اغا دوراهي په سیمه کې هرات ته پرغزیدلي سړک د ګوډاګیو عسکرو رینجر ته نژدې چاودنه وشوه. کله چې عسکر دچاودنې ځای ته رارسېدل یوه بله چاودنه پرې وشوه چې له امله یې ۲ګوډاګي عسکر مړه او یو بل سخت ټپي شو. ۲۰۱۵/۶/۱

### شاولیکوټ کې دښمن سره سخته جګړه وشوه

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند د خال باغ، فریان، یاغي چنار په سیموکې له ګوډاګیو عسکروسره نښته وشوه او دښمن ته پکې درنه مرګ ژوبله واوښته، دچنار په سیمه کې ددښمن یوه شوبله ددهشکې په توسط اویو ګوډاګی عسکر په دارز کوف وویشتل شو. ۲۰۱۵/۶/۱

### ښورابک کې قومندان له ۲ساتونکوسره سخت ژوبل شو

دکندهارولایت د ښورابک ولسوالۍ اړوند د سروچاهانوپه سیمه کې دکنډک قومندان قسیم په رینجر موټر چاودنه وشوه، دچاودنې له امله نوموړی قومندان له خپلو ۲تنه ساتونکوسره سخت ژوبل شو. ۲۰۱۵/۶/۱

### کندهار ښار کې یو ګوډاګی پولیس ژوبل شو

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د ځلورمې حوزې په سیمه کې د لرګو په ګنج کې په تلاشي کونکو پولیسو برید وشو چې په مهال یې یوتن ګوډاګی پولیس سخت ژوبل شو. ۲۰۱۵/۶/۱

### میانشین کې یوه شوبله دماین ښکار شوه

دکندهارولایت د میانشین ولسوالۍ اړوند د تغزاک په سیمه کې ترینکوټ ته پرغزیدلي سړک له ګوډاګي دښمن سره سخته جګړه وشوه، دجګړې په مهال ددښمن یوه شوبله په ماین والوزول شوه چې بشپړه توګه وسوځېده او پکې ناستو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۱



### میوند کې په کاروان برید، یوه شوبله ویجاړه شوه

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند دفقیرګرګو او خاوري دپوستې ترمابین لشکرګاه ته پرغزیدلي سړک دګوډاګي دښمن په موټرېز کاروان بریدترسره شو، دجګړې په مهال ددښمن یوه شوبله په ماین والوزول شوه چې دوه ټوټې شوه اوپکې سپاره ټول ګوډاګیان قتل شول. ۲۰۱۵/۶/۱

### کندهار ښار کې رینجر تخریب د قومندان په شمول ۸ګوډاګیان مړه اوژوبل شول

دکندهارولایت د مرکزکندهارښار په ۶ مه حوزه دمحله نجات د شنه کاریز په سیمه کې دهمدي سیمي دیوه قومندان ( جوجو ) رینجر موټر تر برید لاندي راغی، په برید کې رینجر تخریب شواودنوموړي قومندان په شمول ۸ تنو ګوډاګیانو مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۱

### غورک کې ۵پوستې فتحه ګڼ مهمات غنیمت شول

دکندهار ولایت د غورک ولسوالۍ مرکزته څېرمه د کرکشم، کلاماشا، او ونو په سیموکې ددښمن په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په ترځ کې د دښمن ۵پوستې فتحه ه شوې او ګڼ شمېر ګوډاګیو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته، په پوستو کې مجاهدینو یوه دهشکه، یوراکټ، ۶ کلاشنکوفونه، یو امریکایي ټوپک

۳، ثقیلان، یوه غټه مخابره ۴ عرادې موټرسایکلان، یود مهماتو ډک ډیپو اوګڼ شمېر نور دول دول مهمات غنیمت کړل. ۲۰۱۵/۶/۲

**ښوراېک کې رینجرویجاړ ۹ګوډاګیان مړه اوژوبل شول**

دکندهارولایت د ښوراېک ولسوالۍ اړوند د سروچاهانو په سیمه کې دګوډاګیو سرحدي عسکرو په رینجرموټر چاودنه وشوه، دچاودنې له امله رینجرویجاړ او۹ تنو ګوډاګیانو ته مرګ ژوبله واوښته، همداراز په پیاده سیمه کې دګوډاګي دښمن په یوه بل رینجر موټرهم دماین چاودنه شوې چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۶/۲



**میوندکې یوار بکی قتل موټر سایکل یې ویجاړ شو**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند د شنه سرک په سیمه کې دمجاهدینو دوسلوال بریدپه ترڅ کې یوتن اربکی قتل او موټرسایکل یې ویجاړ شو. ۲۰۱۵/۶/۲

**معروف کې یو ګوډاګی عسکر قتل شو**

دکندهارولایت د معروف ولسوالۍ اړوند د ناوې په سیمه کې له ګوډاګیو سرحدي عسکرو سره سخته جګړه وشوه چې په مهال یې یوګوډاګی عسکر قتل شو. ۲۰۱۵/۶/۳

**شاولیکوټ دقومندان نعمت په پوسته وسلوال بریدوشو**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند د تنګي په سیمه کې دګوډاګي اربکي قومندان ( نعمت )په پوسته بریدوشو چې په ترڅ کې یې یوګوډاګی قتل شو، همداراز له هغو ګوډاګیو عسکروسره هم جګړه وشوه چې سیمې ته دکومک په موخه راورسیدل او درانه تلفات ور واوښتل، دجګړې په مهال یوتن مجاهد زخمي شو. ۲۰۱۵/۶/۳

**غورک کې ۳پوستې فتحه ګڼ شمېر مهمات غنیمت شول**

دکندهارولایت دغورک ولسوالۍ مرکز ته څېرمه د سرخ اباد غونډۍ اویختول په سیموکې دګوډاګي دښمن په امنیتي مهمو مرکزونو بریدونه ترسره شول، د جګړې په ترڅ کې ۳ پوستې فتحه او دسرخ اباد غونډۍ په سیمه کې د دښمن له عسکرو د یووژل شوي عسکر مړی پاته شو،مجاهدینو د دښمن یو رینجرموټر، یوه دهشکه، ۲ هشتاد دو، یو ثقیل، ۲ مخابرې، ۱ غرنی هاوان، ۱ وسط هاوان، ۱۱کلاینز، ۸۰۰۰۰ ( اتیازره) دامریکایي ټوپک مرمی اوګڼ نور مهمات غنیمت کړل. ۲۰۱۵/۶/۳

**معروف کې په موټر سایکل ویجاړ ۲عسکر قتل شول**

دکندهار ولایت د معروف ولسوالۍ اړوند د جرپوستې ته څېرمه دګوډاګیو سرحدي عسکرو په موټرسایکل چاودنه وشوه، دچاودنې له امله موټرسایکل ویجاړ او دوه تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۶/۴

**کندهار ښار کې ۲جاسوسان قتل توپنګچه یې غنیمت شوه**

دکندهارولایت د مرکز اړوند د څلورمې حوزې په سیمه کې دمنګني قومندان پوستې ته څېرمه دهمدې قومندان ۲تنه جاسوسان دغلچکي بریدپه ترڅ کې ووژل شول او یوه توپنګچه یې غنیمت شوه. ۲۰۱۵/۶/۴

**شاولیکوټ کې شوبله ویجاړه ۱۳ګوډاګیانو ته مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند د وچ باختو په سیمه کې دګوډاګیو اربکیانو په پوسته بریدترسره شو،وروسته سیمې ته نورعسکر راورسیدل چې یوه شوبله یې په ماین والوزول شوه، په برید او چاودنه کې شوبله ویجاړه او ۱۳تنه ګوډاګیانو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۴

**کندهار په فدایي برید کې ۱۹ ګوډاګیانو ته مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار ن دشکارپر دوروازه د ۱۵امنیتي حوزې دحاجي عرب په سیمه کې یوتن قهرمان فدایي مجاهد(عبدالله مصعب کندهاري ) دګوډاګیو پولیسوماموریت په داسې حال کې ننوت چې لمړی یې دماموریت په دروازه کې ولاړ پیره دارقتل کړ او بیا یې په ماموریت کې دننه میشت ګوډاګي پولیس تر برید لاندې ونیول، په جګړه کې دهمدې ماموریت دقومندان (میرویس) په شمول ۱۹تنه پولیسواوعسکروته مرګ ژوبله واړوله او له درې ساعته مقاومت وروسته جګړه د فدایي مجاهد په شهادت پای ته ورسیده، تقبله الله. ۲۰۱۵/۶/۵

**غورک کې دګوډاګي اداري دوژل شویو ۱ قوماندان او ۵ پولیسو مړي سره صلیب ته وسپارل شول**

د کندهار ولایت دغورک ولسوالي پرمرکز او شاو خوا پوستو د مجاهدینو د بریدونو په مهال دقوماندان عبدالله په شمول د ۶تنو عسکرو مړي چې دجګړې په ډګر کې پاتې شوي وو، دسیمې دسپین ږیرو، مخورو او قومي مشرانو په غوښتنه او بشر ته د درناوي له امله مجاهدینو سره صلیب ته وسپارل تر څو خپلو کورنیوته ورسیږي. ۲۰۱۵/۶/۵



### کندهار ښار تکتیکي چاودني ۲پولیس قتل یوژوبل کړ

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د ۹ حوزې په سیمه کې په تلاشي کونکو پولیسو دتکتیکي ماین چاودنه وشوه چې په پایله کې یې ۲پولیس قتل اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۵/۶/۶

### شاولیکوټ دګوډاګیانو ټانګ دماین ښکار شو

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالي اړوند د باغتو په سیمه کې دګوډاګي دښمن یوټانګ په ماین والوزول شو، دچاودني له امله ټانګ تخریب اوپکې ناستو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۶

### ارغستان کې قرارګاه په توغندیو وویشتل شوه

دکندهارولایت د ارغستان ولسوالي اړوند د سپیني کاري په سیمه کې دګوډاګیو سرحدي عسکرو په قرارګاه ۲ توغندي وتوغول شول چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۶/۶

### میوندکې ۲عسکر قتل او په پوسته بریدو شو

دکندهارولایت د میوند ولسوالي اړوند د شنه سرک په سیمه کې دګوډاګي دښمن په پلې ګزمه چاودنه وشوه چې له امله یې ۲تنه ګوډاګي عسکر ووژل شول. همداراز په یاده سیمه کې دارېکیانو په امنیتي پوسته دهاوان برید وشو چې په پایله کې یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۶/۷

### بولدک په وسلوال برید کې دګوډاګیانو ۲ شوبلې تخریب شوې

دکندهارولایت د بولدک ولسوالي اړوند د بزوسوکي په سیمه کې کندهارښارته پرغزیدلي سرک د سرحدي عسکرو په موټریزه ګزمه بریدترسره شو، دبرید په مهال ددښمن یوه شوبله په هشتادودو وویشتل شوه چې په بشپړه توګه وسوځېده اویوبله شوبله یې تخریب شوه، په دې علاوه دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۸

### میوندکې ۲ګوډاګي عسکر قتل شول

دکندهارولایت د میوند ولسوالي اړوند د شنه سرک په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په پوسته بریدترسره شو، په بریدکې ۲ګوډاګي عسکرقتل شول او پوستې ته هم زیان واوښت. ۲۰۱۵/۶/۸

### کندهار ښار کې ماین ۲پولیس ژوبل کړل

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار اړوند د څلورمې حوزې په سیمه کې دتکتیکي ماین چاودني دوه په موټرسایکل سپاره پولیس سخت ژوبل کړل. ۲۰۱۵/۶/۸

### ارغنداب کې ماین ۳عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله

دکندهارولایت دارغنداب ولسوالي اړوند د اماني په سیمه کې دمزدوري اردو په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۳ګوډاګیو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۸

### ښورابک کې په قرارګاه برید، ۶عسکروته مرګ ژوبله واوښته

دکندهارولایت دښورابک ولسوالي اړوند د سرو چاهانو په سیمه کې دګوډاګیو سرحدي عسکرو په قرارګاه بریدترسره شو، دبرید په مهال په یاده قرارګاه توغندي هم وتوغول شول چې دښمن ته پکې زیان واوښت، دغه راز ددښمن یورینجر موټرپه ماین والوزول شو چې په پایله کې یې رینجرتخریب، ۲تنه ګوډاګي عسکر مړه او ۴ نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۶/۸

### معروف کې قومندان ژوبل ساتونکي یې قتل شو

دکندهارولایت د معروف ولسوالي اړوند د باریانو په سیمه کې له اربکیانو سره سخته جګړه ونښته دجګړې په پایله کې اربکی قوماندان (نیکو)سخت ژوبل شو او یو ساتونکی یې ووژل شو. ۲۰۱۵/۶/۸

### خاکریز کې نفوذي مجاهدینو ۵ګوډاګیان قتل کړ، مهمات غنیمت کړل

دکندهار ولایت دخاکریز ولسوالي اړوند د کیدو په سیمه کې داسلامي امارت ۲تنه قهرمانو نفوذي مجاهدینو دارېکیانو په یوه مهمه پوسته کې په میشتو اربکیانو وسلوال برید وکړ، نفوذي مجاهدینو ۵ تنه اربکیان ووژل او له یوې دهشکې، یوثقیل، یوراکټ ۲کلاشنکوفونو او نورومهماتو سره تر مجاهدینوورسېدل. ۲۰۱۵/۶/۸

## دامان کې په رینجر موټر چاودنه وشوه

دکندهارولایت د دامان ولسوالۍ اړوند د ترنک پل ته څېرمه دګوډاګیو عسکرو په رینجر موټر دویشتونکي ماین په مټ چاودنه وشوه، دچاودنې له امله دښمن ته دوراوښتو تلفاتو کره شمېره نه ده تر لاسه شوې. ۲۰۱۵/۶/۹



## کندهار ښار کې دپولیسو په ګزمه دماین چاودنه وشوه

دکندهارولایت دمرکز کندهارښار دخواجک بابا په سیمه کې دپولیسوپه پلې ګزمه د ماین چاودنه وشوه چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۶/۹

## غور ک کې یوه هلیکوپټر په عمري میزائل وویشتل شوه

د کندهار ولایت دغورک ولسوالۍ په مر کز شاکاریز سیمه کې یوه هلیکوپټر چې په سیمه کې یې بمبار کاوو داسلامي امارت دمجاهدینو له لوري په زیکویک وویشتل شوه او بېرته ناستې یې وکړه، خبر زیاتوي څلور ورځې وروسته تخریب شوي الوتکه په داسې حال کې په عمري توغندي وویشتل شوه چې د ترمیم لپاره یې کڼ عراده جات او انجینران راغلي وو، په برید کې الوتکه او یو شمېر نور عراده جات له منځه لاړل. ۲۰۱۵/۶/۹

## کندهار ښار کې غلچکي برید کې ۱پولیس قتل شو

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د شوراندام کوتل په سیمه کې په پولیسو برید وشو چې په پایله کې یې اتن ګوډاګی پولیس ووژل شو. ۲۰۱۵/۶/۱۰

## خاکریز کې ۲ګوډاګي پولیس قتل شول

دکندهارولایت د خاکریز ولسوالۍ اړوند دچهارسنګ په سیمه کې په ګوډاګیو پولیسو وسلوال برید ترسره شو،دبرید په پایله کې ۲ تنه ګوډاګي پولیس قتل او نور په تېښته بریالي شول. ۲۰۱۵/۶/۱۰

## غور ک کې دامنیه قومندان مرستیال له ۲ملګروسره قتل شو

دکندهار ولایت د غورک ولسوالۍ اړوند د بارم په سیمه کې دهمدې ولسوالۍ دامنیه قومندان مرستیال ( ذبیح الله ) له خپلو ۲تنو ملګروسره دمجاهدینو دکمین په برید کې ووژل شو. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## ښورابک کې رینجرویجاړ ۳عسکر قتل ۴ژوبل شول

دکندهارولایت د ښورابک ولسوالۍ اړوند د ربلې په سیمه کې د سرحدي عسکرو په رینجر موټر چاودنه وشوه چې له امله یې موټرویجاړ،۳عسکر مړه او ۴ نورژوبل شول. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## ښورابک کې په قرارګاه توغندیز بریدوشو

دکندهارولایت د ښورابک ولسوالۍ اړوند د سروڅاهانوپه سیمه کې ددښمن په قرارګاه دتوغندیو او هفتاد پنج بریدونه وشول چې دښمن ته پکې تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## نېش کې نفوذي مجاهد ۲عسکر قتل ۲ژوبل کړل

دکندهارولایت د نېش ولسوالۍ په مربوطاتو کې نفوذي مجاهد د دښمن په پوسته کې په میشتو عسکرو برید وکړ، ۲ګوډاګي عسکر یې ووژل او ۲ نوریې ژوبل کړل. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## کندهار ښار کې دجاسوسي شبکې غړی(غمی) قتل شو

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د ۲حوزې په سیمه کې نعمت صالون ته څېرمه دجاسوسي شبکې غړی ( غمی ) دمجاهدینو دغلچکي برید په ترڅ کې قتل شو. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## کندهار ښار کې دجاسوسي شبکې یوبل غړی له خپل ملګري سره قتل شو

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د ۷ حوزې په سیمه کې داستاد عبدالعلیم کورته څېرمه دجاسوسي شبکې غړی ( احمدشاه ) دغلچکي برید په ترڅ کې قتل شو، وروسته داحمدشاه یو ملګری چې هغه یې کوله چریکي مجاهد ونیسي دنورو چریکي مجاهدینوله لوري وویشتل شو اووژل شو. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## میانیشین کې ماین ۲عسکرووژل

دکندهارولایت د میانشین ولسوالۍ اړوند د یلبک په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په موټر سایکل چاودنه وشوه، دچاودنې له امله موټرسایکل ویجاړ او دوه تنه ګوډاګي عسکر قتل شول. ۲۰۱۵/۶/۱۱

## غور ک کې ۱رینجرویجاړ ۹عسکر قتل شول

دکندهارولایت د غورک ولسوالۍ اړوند د کوتل فاج په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو وسلوال برید ترسره شو، دبرید په پایله کې ددښمن څلورتنه عسکر قتل ۲ نورزخمیان اونورو دتېښتې لاره خپله کړه، دتېښتې په مهال ددښمن

یورینجر موټرله غره څخه ولوېدچې په بشپړه توګه ویجاړ او ۵ تنه عسکر پکې ووژل شول. ۲۰۱۵/۶/۱۱

**کندهار ښار کې دژړې- څار نوال ووژل شو**

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د څلورمې حوزې په سیمه کې دحاجي لالک ماما تعمیر ته څېرمه دژړې ولسوالۍ څارنوال دمجاهدینو دغلچکي بریدپه ترڅ کې قتل شو. ۲۰۱۵/۶/۱۲

**شاولیکوټ کې قومندان له ساتونکي سره قتل مهمات یې غنیمت شول**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند د خان بلاغ په سیمه کې په اربکي قومندان (جمیل) وسلوال بریدترسره شو، دبریدپه پایله کې نوموړی قومندان له خپل یوه ساتونکي سره قتل کلاشنکوف اوچاټته یې غنیمت شول. همداراز په یاده سیمه کې یواربکی تسلیم شو او نوراربکیان له خپلې پوستې وتښتېدل اوپوسته یې تخلیه کړه. ۲۰۱۵/۶/۱۲

**ارغستان کې پوسته په هشتادو دوو ویشتل شوه**

دکندهارولایت د ارغستان ولسوالۍ اړوند دشنه نرې په سیمه کې دسپین قومندان په پوسته دهشتاد دو برید وشو، د بریدپه مهال دهشتاد دو ۲ مرمۍ په پوسته کې ولګیدې چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۶/۱۳

**معروف کې دګوډاګي عسکرورینجر په زیکویک وویشتل شو**

دکندهارولایت د معروف ولسوالۍ اړوند د ناوې په سیمه کې دجر پوستې ته څېرمه دګوډاګیو عسکرو په رینجر موټر دزیکویک برید وشو چې په پایله کې یې رینجر تخریب اوپکې ناستو ګوډاګیانوته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۱۳

**شاولیکوټ کې له ګوډاګیانو سره سخته جګړه وشوه**

د کندهار ولایت د شاولیکوټ اړوند د کوندلان په سیمه کې له پولیسو او اربکیانوسره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ۳ تنو پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته اوپاتي نوریې د مانو سیمې ته وتښتېدل. ۲۰۱۵/۶/۱۴

**د کندهار هلمندپه ګډه پوله کمپر ک کې په دښمن بریدو شو**

د کندهاراوهلمند ولایتونو په ګډه پوله دکمپرک په سیمه کې په ګوډاګیو عسکروو سلوال بریدترسره شو چې په مهال یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۶/۱۴

**ارغستان کې په پوسته توغندیز بریدترسره شو**

دکندهارولایت د ارغستان ولسوالۍ اړوند د سپیني ګاري په سیمه کې دګوډاګي دښمن په پوسته توغندیز بریدترسره شو، دبرید په مهال توغندي په پوسته کې دننه ولګېد چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۶/۱۲

**میوند کې ماین ۲ ګوډاګي عسکر قتل کړل**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند د شنه سرک په سیمه کې دمزدوري اردوپه پلي ګزمه دویشتونکي ماین چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ګوډاګي عسکر قتل شول.۲ ۲۰۱۵/۶/۱۵

**کندهار ښار کې دزابل داستخبارات رئیس قتل شو**

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار اړوند ۱۰ حوزه دکابل دوراهي په سیمه کې دمزدوري اردو پخوانی افسر چې اوس دګوډاګي اداري له لوري دزابل ولایت داستخباراتو درئیس په توګه ټاکل شوی ؤ دچریکي مجاهدینوله لوري ووژل شو. ۲۰۱۵/۶/۱۷



**ارغستان کې ددښمن اکمالاتي قوه دلاري له نیمايي وتښتیده**

دکندهارولایت د ارغستان ولسوالۍ اړوند د شنه نرې په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو ستري قرارګاه ته تلونکي اکمالاتي کاروان چې له ټېرو ۴ورځو راهیسي مجاهدینو را ایسار کړی وو، له نیمايي لاري بیرته په تښتېدنه لاړ، دبریدونوپه مهال په سیمه کې ددښمن چورلکو بمباري وکړه خو زیان یې نه درلود. ۲۰۱۵/۶/۱۸

**شاولیکوټ کې ۳ اربکیان قتل شول**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند د شیرجان کلي په سیمه کې په اربکیانو وسلوال برید وشو چې په ترڅ کې یې ۳تنه ګوډاګي اربکیان قتل شول. ۲۰۱۵/۶/۱۸

**ارغستان کې په شوبله دماین چاودنه وشوه**

دکندهارولایت د ارغستان ولسوالۍ اړوند د ونو په سیمه کې دګوډاګیو سرحدي عسکرو په شوبله چاودنه وشوه چې له امله یې شوبله ویجاړه اوپکې ناستو ګوډاګیانوته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۶/۱۹

**پنجوايي کې رینجر اوپکې سپاره ګوډاګیان له منځه لاړل**

